شمـا ر ه 5

مـضمـ ـــــــــــــــــــــــــــــــــــــــون	صفـحـه



# كله چې له انسان څخه روح ووزي

چې له انسان څخه روح وزي نو دا روح د ملائكو په واسطه پورته اسمان ته وخېږول شي هلته ورسره نور هغه د نېكانو خلقو ارواح مخامخ كيږي چې دی يې په دنيا كې پېژندلو هلته هغوی ورسره پداسې توګه ملاقات كوي لكه څوک چې له كوم ځای نه مسافرو ته راشي هغوی ورڅخه د علاقې د خلقو په اړه پوښتنې كوي فلانی څنګه وو؟ فلانې څه كول ... پدې اړه حضرت ابو هريره فرمايي رسول ﷲ فرمايل : إِذَا حُضِرَ الْمُؤْمِنُ أَتَتْهُ مَلَائِكَةُ الرَّحْمَةِ بِحَرِيرَةٍ بَيْضَاءَ ، فَيَقُولُونَ : اخْرُجِي رَاضِيَةً مَرْضِيًّا عَنْكِ إِلَى رَوْحِ اللَّهِ وَرَيْحَانٍ وَرَبٍّ غَيْرِ غَضْبَانَ ، فَتَخْرُجُ كَأَطْيَبِ رِيحِ الْمِسْكِ حَتَّى أَنَّهُ لَيُنَاوِلُهُ بَعْضُهُمْ بَعْضًا حَتَّى يَأْتُونَ بِهِ بَابَ السَّمَاءِ ، فَيَقُولُونَ : مَا أَطْيَبَ هَذِهِ الرِّيحَ الَّتِي جَاءَتْكُمْ مِنَ الْأَرْضِ ، فَيَأْتُونَ بِهِ أَرْوَاحَ الْمُؤْمِنِينَ فَلَهُمْ أَشَدُّ فَرَحًا بِهِ مِنْ أحدكُمْ بِغَائِبِهِ يَقْدَمُ عَلَيْهِ ، فَيَسْأَلُونَهُ مَاذَا فَعَلَ فُلَانٌ ؟ مَاذَا فَعَلَ فُلَانٌ ؟ فَيَقُولُونَ : دَعُوهُ فَإِنَّهُ كَانَ فِي غَمِّ الدُّنْيَا ، فَإِذَا قَالَ : أَمَا أَتَاكُمْ ؟ قَالُوا : ذُهِبَ بِهِ إِلَى أُمِّهِ الْهَاوِيَةِ ... الحديث . ". [1]

ترجمه : كله چې د مؤمن ځانكدن شي د رحمت ملائكې ورته راشي چې سپينه ورېښم ټوټه يې په لاس كې وي بيا ورته وايي : راوزه پداسې حال كې چې ته به راضي وې او له تا نه به راضي وي د ﷲ نعمتونو او خوشحاليانو ته پداسې حال كې چې ﷲ تاته غصه نه دی نو دا روح را وزي لكه بهترينه د مسكو خوشبويي فرښتې يې يو بل ته سره وركوي ترڅو چې د اسمان دروازې ته يې

---

[1] سنن النسائي

ورسوي بيا هلته ورته ملائكې وايي : دا ښه بوى د څه شي دى چې تاسې له زمکې څخه راوړو؟ بيا د مؤمنانو ارواح (چې له ده څخه مخکې وفات شوي وي او ارواح يې هلته جمع وي) وربانډې را ټول شي تر هغه خوشحالي نه ورته زيات خوشحال وي لکه څوک چې د يوه مسافر راتللو ته خوشحاليږي بيا ورڅخه پوښتنه کوي فلاني څه وکول؟ فلاني څه وکول؟ دى به ورته وايي : (د يو کس په اړه چې پوښتنه وکوي) هغه پريږدئ د دنيا په غم کې آخته وو (کله به د يو داسې چا پوښتنه وکوي چې د هغه اعمال خراب وو او هغه له ده څخه مخکې په حق رسېدلى وو) دى به ورته ووايي : ولې هغه دلته نه دى راغلى (هغه خو مخکې مړ شوى وو) دوى به ووايي : نه هغه هاوية (هغه ځاى چېرته چې د کفارو ارواح ځي) ته تللى دى ..

همدارنګه حضرت ابن مبارک د حضرت ابو ايوب انصاري څخه نقل کوي او فرمايي :

إذا قبضت نفس المؤمن تلقاها أهل الرحمة من عباد الله تعالى كما يتلقون البشير في الدنيا ، فيقبلون عليه يسألونه فيقول بعضهم لبعض: انظروا أخاكم حتى يستريح ، فإنه كان في كرب شديد قال : فيقبلون عليه فيسألونه : ما فعل فلان ؟ ما فعلت فلانة هل تزوجت ؟ فإذا سألوه عن الرجل قد مات قبله فيقول : إنه هلك فيقولون : إنا الله و إنا إليه راجعون . ذهب به إلى أمه الهاوية فبئست الأم وبئست المربية قال : فتعرض عليهم أعماله فإن رأوا حسناً فرحوا واستبشروا وقالوا : اللهم هذه نعمتك على عبدك فأتمها . و إن رأوا شراً قالوا : اللهم راجع بعبدك.

ترجمه : کله چې د مؤمن روح واخيستل شي نو نېکان خلق ورسره داسې مخامخ شي لکه د راغلي زيري ورکونکي سره چې مخامخ کيږي ورته راشي پوښتنې ورڅخه کوي ځينې يې ځينو ته وايي : دا

ورور مو لږ پريږدئ چې لږ ارام وکوي (دمه شي) په ده ډېر تکليف تېر شوى دى .. بيا ورته راشي پوښتنې ورځخه کوي فلانى څه وکول؟ فلانى څنګه شوه واده شوه؟ کله چې د يو داسې کس پوښتنه وکوي چې هغه له ده څخه وړاندې په حق رسېدلى وي نو دى ورته ووايي : هغه خو مخکې وفات شوى دى نو دوى ټول وربانديې خفه شي او بيا **إنا الله و إنا إليه راجعون** ووايي نو ووايي چې دلته نه دى راغلى هغه بيا خپل ځاى هاوية (هغه ځاى چېرته چې د بد عمله خلقو ارواح ځي) ته تللى دى بيا دده عملونه ور ښکاره کړل شي که نېک وي نو دوى ټول ددې خپل راغلي مېلمه اعمالو ته خوشحال شي او ووايي اى الله دا پدې بنده باندې ستا نعمت او انعام وو چې ده ته د داسې نېکو عملونو د کولو توفيق ورکړى وو الله دا نعمت ورته پوره کړه ... (جنت ته يې پرېږ ورسوه) او که په اعمالو کې يې بد عملونه وي نو بيا ووايي اى الله دې بنده ته تردې ګناهونو ور تېر شه .

همدارنګه حضرت انس ابن مالک فرمايي : رسول الله فرمايل : **إن أعمالكم تعرض على عشائركم وأقاربكم من الموتى فإن كان خيراً استبشروا ، وإن كان غير ذلك قالوا : اللهم لا تمتهم حتى تهديهم لما هديتنا .** [1]

ترجمه : بېشکه ستاسې اعمال ستاسې په وفات شويو خپلوانو باندې ور وړاندې کيږي (هغوى ته ور ښکاره کول کيږي) که چېرته نېک اعمال وي نو هغوى ورته خوشحال شي او که بد اعمال وي هغوى وايي اې الله ترڅو دې چې ورته سمې لارې ته هدايت نه وي کړى مه يې مړ کوه .

---

[1] **سنن الترمذي**

په یو بل حدیث کې رسول الله  فرمایي : **تعرض الأعمال یوم الاثنین ویوم الخمیس علی الله ، و تعرض علی الأنبیاء وعلی الأباء والأمهات یوم الجمعة ، فیفرحون بحسناتهم وتزداد وجوههم بیاضاً وتشرق . فاتقوا الله عباد الله لا تؤذوا موتاکم بأعمالکم .**

ترجمه : د دوشنبې او پنجشنبې په ورځ ستاسې عملونه الله  ته وړاندې کیږي او انبیاوو ته ، ستاسې پلرونو او میندو ته د جُمعې په ورځ ور ښکاره کول کیږي هغه ستاسې په نیکو عملونو خوشحالیږي او مخونه یې نور هم له خوشحالي نه سپینیږي او ځلیږي ای د الله  بندګانو له الله نه وډار شئ (ګناهونه او بد اعمال مه کوئ) خپلو مړیو ته په خپلو (بدو) عملونو باندې تکلیف مه ورکوئ .

پدې اړه چې له مرګ نه وروسته د مړیو روحونه له یو بل سره خبرې کوي کنه او یا له یو بل سره ملاقاتونه کوي او کنه ابن قیم  په کتاب الروح کې بحث کړی دی زه یې خلاصه ستاسې په وړاندې ایږدم هغه مبارک  فرمایي :

## د ارواحو یو له بل سره ملاقات

او دا مسئله چې د مړیو ارواح له یو بل سره ملاقات کوي او کنه ؟ له یو بل نه لیدنه کوي او کنه دا هم لویه مسئله ده او ځواب یې دادی چې روحونه په دوه ډوله دي :

١ . هغه ارواح چې په تکلیف او عذاب کې وي

٢ . هغه ارواح چې په نعمتونو کې وي .

هغه ارواح چې په عذاب کې وي هغوی په خپل ځان اخته وي او ددې موقع او سهولت ورسره نه وي چې له يو بل سره ملاقات وکوي او يا له يو بل څخه ليدنه وکوي او هغه ارواح چې په راحت او سهولت کې وي په هغوی څه بنديز نه وي هغوی له يو بل سره ملاقاتونه او زيارتونه کوي او د هغه څه په اړه خبرې او بحثونه کوي چې په د نيا کې واقع شوي وو او يا واقع کيږي او هلته ټول ارواح له يو بل سره د هغوی د مرتبو په حساب يو ځای کيږي څرنګه چې د چا عمل وي په هغه ډول مرتبه ورته ورکوله کيږي او په خوا کې ورسره هغه نور خلق وي چې اعمال يې د همده په ډول وي د مثال په ډول د رسول الله روح اطهر په رفيق اعلی کې وي او هغه څوک چې په سمه توګه يې د هغه متابعت کړی وي هغوی هم له ده مبارک سره وي لکه الله چې فرمايي : **وَمَنْ يُطِعِ اللَّهَ وَالرَّسُولَ فَأُولَئِكَ مَعَ الَّذِينَ أَنْعَمَ اللَّهُ عَلَيْهِمْ مِنَ النَّبِيِّينَ وَالصِّدِّيقِينَ وَالشُّهَدَاءِ وَالصَّالِحِينَ وَحَسُنَ أُولَئِكَ رَفِيقًا** .[1]

ترجمه : او هرڅوک چې حکم مني د الله او د رسول (د الله ) نو دغه کسان به له هغو سره وي (په جنت کې) چې انعام کړی دی الله پر دوی باندې چې انبياء دي او صديقان دي او شهيدان دي او صالحان دي او ښه دي دغه کسان له جهته د رفاقته (چې ښه ملګري دي) .

او دا يو ځای والی په دنيا کې هم وي پس له مرګه هم وي او بيا په جنت کې هم وي ځکه خو رسول الله هم فرمايي : والمرء مع من أحب (انسان له هغه چا سره وي چې دده خوښ وي) همدارنګه په بل آية کې الله پاک مسلمه نفس ته

[1] **سورة النساء آية ٦٩**

فرمايي : يَا أَيَّتُهَا النَّفْسُ الْمُطْمَئِنَّةُ * ارْجِعِي إِلَى رَبِّكِ رَاضِيَةً مَرْضِيَّةً * فَادْخُلِي فِي عِبَادِي * وَادْخُلِي جَنَّتِي .[1]

ترجمه : اي نفسه آرام نيوونكيه (په ذكر زما شاكر په نعمت زما صابر په زحمت زما) وګرځه (له دنيا نه) په طرف د رب خپل حال دا چې راضي خوښ به يې ته (له الله څخه او الله ) راضي خوښ (به وي له تا څخه) بيا ننوزه په (نيكانو) بندګانو زما كې او ننوزه په جنت زما كې (سره له نورو مقربانو) .

پدې آية كې الله نفس ته وويل چې زما په بندګانو كې داخل شي او زما جنت ته داخل شه .. او دا هغه خطاب دی چې الله يې هر پاک او مطمئن نفس ته د مرګ په وخت كې كوي .

همدارنګه الله د بختورو شهيدانو په اړه فرمايي : وَلاَ تَحْسَبَنَّ الَّذِينَ قُتِلُوا فِي سَبِيلِ اللهِ أَمْوَاتاً بَلْ أَحْيَاءٌ عِندَ رَبِّهِمْ يُرْزَقُونَ * فَرِحِينَ بِمَا آتَاهُمُ اللهُ مِن فَضْلِهِ وَيَسْتَبْشِرُونَ بِالَّذِينَ لَمْ يَلْحَقُوا بِهِم مِّنْ خَلْفِهِمْ أَلاَّ خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلاَ هُمْ يَحْزَنُونَ * يَسْتَبْشِرُونَ بِنِعْمَةٍ مِّنَ اللهِ وَفَضْلٍ وَأَنَّ اللهَ لاَ يُضِيعُ أَجْرَ الْمُؤْمِنِينَ.[2]

ترجمه : او له سره ګمان مه كوه ! (ای محمده يا ای سامعه !) پر هغو كسانو چې وژل شوي دي دوی په لاره د الله (جهاد او طاعت) كې د مړو (مړه نه دی)،بلكه ژوندي دي په نزد د رب خپل رزق ورته وركولی شي (له جنتي ماكولاتو او مشروباتو څخه) په دې حال كې چې خوشاله دي دوی په هغه شي باندې چې ور كړي دي دوی ته الله له فضله خپله او خوشاليږي دوی (په راتلو د) هغو

[1] سورة الفجر آية ٢٧ نه تر ٣٠
[2] سورة آل عمران آية 169تر171

کسانو باندې چې لا نه دي رسيدلي دوی تر هغو پورې وروسته د دوی نه په دې شان سره چې نه به وي (هيڅ قسم) ويره په دوی باندې او نه به دوی هېچرې غمجن کيږی (د ثواب په نقصان سره) خوشالیږي دوی په نعمت سره له (جانبه د) الله او (د ده په) فضل سره او (په دی سره چې) بېشکه الله نه ضائع کوي اجرا د مؤمنانو (بلکه پوره ئې ورکوي).

په پورتنيو آيتونو کې دری خبرې دي چې دا ورڅخه معلوميږي چې د مسلمانانو روحونه له يو بل سره ملاقات کوي او يو له بل سره خبرې کوي :

اول : دا چې دوی ته روزي ورکوله کيږي او ژوندي دي نو چې ژوندي وي خامخا به يو له بل سره ملاقات کوي

دوهم : هغه ملګري چې په دوی پسې وروسته ورځي دوی ورته خوشحاليږي .

دريم : يستبشرون په لغت کې دا معنی چې يو بل ته زيری ورکوي چې کله څه د خوشحالي خبره وشي[1] .

## روح چې له بدن څخه بهر شي

کله چې روح له بدن څخه بهر شي دا چېرته ځي؟

پدې اړه صحيح مذهب دا دی چې دا روح ملائک پورته کړي تردې چې د الله په وړاندې يې کيږدي که چېرته د نېکانو له جُملې نه وي الله به ووايي : ده ته په جنت کې دده ځای ورښکاره کړئ بيا چې ترڅو پورې چې دده جسد په کفن کيږي او دده

---

[1] ابن قيم

تجهیز پوره کیږي ده ته په جنت کې دده ځای ور ښکاره کړي بیا یې بېرته را وړي کله چې دده جسد په اوږو بار کړل شي دی د ټولو خلقو خبرې آوري چې څوک دده په اړه ښه او څوک بد وایي کله چې په قبر کې کېښودل شي نو بیا روح پکې بېرته واچول شي او ملائکې ورته راشي چې تفصیل به یې وروسته د قبر په خبرو کې راشي **ان شاء الله** .

حضرت عمرو بن دینار فرمایي : **ما من میت یموت إلا روحه في ید ملك ، ینظر إلى جسده کیف یغسل ، وکیف یکفن ، وکیف یمشي به فیجلس في قبره ویُقالُ له اسمع ثناء الناس علیك.**

ترجمه : هرڅوک چې مړه کیږي د هغه روح د ملک په لاس کې وي خپل جسد ته ګوري چې هغه څنګه وینځل کیږي ، څنګه کفن ورکول کیږي او څنګه وړل کیږي او بیا په قبر کې کینول کیږي ورته ویل کیږي : ستا په اړه د خلقو صفتونه واوره .

حضرت امام غزالي په کشف علوم الآخرة کې لیکلي دي :

کله چې ملک نېک بخت انسان مړ کړي دوه ښائسته مخې ملکې ورته راشي چې ښکلې جامې یې په ځان وي او ښکلی بوی یې وي هغه دا روح په حریر جامه کې چې له جنت نه یې راوړې وي تاو کړي د شاتو د مچۍ په اندازه باندې مکمل انسان وي په دنیا کې یې چې څومره عقل او علم درلود هغه ټول ورسره وي بیا په هوا کې وړل کیږي مخکې چې کوم خلق تېر شوي دي هغه ویني لکه ملخان په زمکه پراته ورته ښکاره کیږي ترڅو چې د دنیا اسمان ته ورسول شي ملکه دروازه و ټکوي ورته وویل شي : څوک یې؟ ورته خپل ځان معرفي کړي او ورته وایي دا زما سره ملګری فلانی دی (په هغه نوم یې یاد کړي چې په دنیا کې دده په نومونو

کې تر ټولو غوره وو او د ه ته ډېر ګران وو) هغه ورته ووايي ... هو دا خو ښه انسان وو بيا دوهم اسمان ته ورسيږي هلته دروازه و ټکوي په هماغه ډول سوال او ځواب هلته هم تکرار شي په همدې ډول به د الله په حضور کې وړاندې کړل شي ..

حضرت يحی بن اکثم يو بزرګ شخصيت وو هغه چې کله وفات شو چا په خوب کې وليد ورته يې وويل : الله درسره څه وکول؟ ده وويل : په خپل حضور کې يې ودرولم بيا يې راته وويل : اې بده سپين ږيريه دا کار د وکولو او دا د وکول ... ده ويل ما ورته وويل : ربه ماته خو ستا په اړه داسې قصه نه وه شوې (ستا په اړه خو ماته داسې چا نه وو ويلي چې ته به لما سره داسې رويه کوې) بيا الله راته وويل : نو بيا تاته زما په اړه څه ويل شوي وو؟ دی وايي ما ورته وويل : ماته زهري وويل هغه له معمر نه روايت کولو هغه له حضرت عائشې نه روايت کولو او هغې له رسول الله نه روايت کولو رسول الله له حضرت جبريل نه روايت کولو او هغه لتا څخه روايت کولو چې تا فرمايل : **إني لأستحيي أن أعذب ذا شيبة في الإسلام** (زه لدې نه حياء کوم چې هغه کس ته عذاب ورکړم چې خپل وېښته يې په اسلام کې سپين کړي وي) بيا الله راته وويل : يحی تا رښتيا وويل ، زهري رښتيا ويلي دي ، معمر رښتيا ويلي دي عائشې رښتيا ويلي دي محمد رښتيا ويلي دي جبريل رښتيا ويلي دي ما تاته بښنه وکوله .

حضرت منصور بن عمار چې کله وفات شو چا په خوب کې وليد پوښتنه يې ترې وکوله : منصوره الله درسره څه وکول؟ ده ورته وويل : الله زه په خپل حضور کې ودرولم راته يې وويل : منصوره څه د راوړي دي؟

ما ورته وويل : شپږدپرش حجونه مې راوړي دي .

الله راته وويل : په هغې کې ما يو هم نه دی قبول کړی .

بيا يې راته وويل : منصوره څه شی د راوړي دي ؟

ما ورته وويل : دری سوه شپېته د قرآن کريم ختمونه مې راوړي دي .

الله راته وويل : په هغې کې ما يو هم نه دی قبول کړی .

بيا يې راته وويل : منصوره څه شی د را وړي دي ؟

ما ورته وويل : ته مې راوړی يې ...

الله راته وويل : اوس ته ماته راغلې ځه لاړ شه بښنه مې درته وکوله .

او کله چې د کافر سړي نه روح واخلي نو هغه په زور ترينه اخلي او هغه په زوره زوره چيغې وهي لکن انسانان هغه نه آوري کله چې ملک الموت روح ورڅخه واخلي نو زبانيه فرښتو ته يې ورکړي چې بد بد شکلونه او بد رنګونه يې وي ، تورې جامې يې وي او بد بوی ترينه ځي په يوه بده جامه کې يې تاو کړي په شکل کې لکه ملخ دومره وي او په جسم کې له مسلمان څخه کافر لوی وي يعني د آخرت د جسم په حساب بيا به دا روح وخېږول شي ترڅو چې د دنيا اسمان ته ورسيږي دروازه به وټکوي پوښتنه به وشي ته څوک يې؟ ملک به ورته خپل تعريف وکوي بيا به هغه ورڅخه پوښتنه وکوي درسره څوک دي؟ ورته به ووايي

فلانی د فلاني زوی په دنیا کې چې دده کوم بد نومونه وو هغه به ورته یاد کړي دروازه به ورته خلاصه نه شي او بېرته به له هغه ځایه را وغورځول شي زبانیه فرښتې به یې هم پریږدي سجین ته به ورسیږي سجین هغه ځای دی چېرته چې د کفارو ارواح جمع کیږي .

## تر ساه وتلو ورسته

کله چې د انسان څخه ساه ووزي نو باید د مسلمانې او کافرې کورنۍ فرق پدې وخت کې وشي ځکه په مسلمانه کورنۍ کې چې مړی وشي نو هغوی پدې یقین چې وي موږ ټول مړه کیږو او ټول به له الله سره بیا یو ځای کیږو نو د ډېر غم او فریاد ضرورت نشته له بله پلوه دا هرڅه واقعات د الله له لوري موږ ته مقرر کړل شوي دي انسان صرف یو کار کولی شي چې وربانديې صبر وکوي حضرت سعید بن جبیر به چې خپل زوی ولیدو فرمایل به یې : زما په وړاندې دده ښه حالت دا دی چې دی وفات شي او زه دده په وفات باندې صبر وکوم ..

لکن په اکثرو کورونو کې خبره ددې په عکس وي چې کله په کوم کور کې څوک وفات شي پاتې خلق یې په غم ښکاره کولو کې داسې کارونه کوي چې هغه ټول ناروا وي د مثال په ډول د پردې خیال نه ساتل کومې ښځې چې وي هغه بالکل ددې فکر نه کوي چې په دوی باندې پرده کول ضروري دي او د چا له مرګ سره له دوی نه د پردې حکم ساقط شوی نه دی ... پدې اړه ماته د یوې صحابیې قصه رایادیږي دا مبارکه ام خلاد وه د حضرت عمرو بن الجموح مېرمن وه په غزوة اُحد کې یې ورور، خاوند او زوی په شهادت رسېدلي وو ټول یې په خپله ا وښه را بار کړل او مدینې منورې ته را روانېده چې حضرت عائشه په مخه ورغله

ورتــه یــې وویــل : څـه حـال دی ؟ حضرت ام خلاد ورتـه وویـل : رسول الله  پـه امـن کـې دی او د هغـه نـه وروسـتـه بـل هرغم وړوکـی دی خو کـلـه یـې چې اوښـه مـدیـنـې منـورې تـه کـړه نـو اوښه نـه تـلـه او کـلـه بـه یـې چې د اُحد مـیـدان تـه کـړه نـو اوښه بـه تـیـزه تـلـه بـیـا رسول الله  حکم وکـولـو چې شهـیـدان بـه ټـول همدلـتـه دفـن کـیـږي ... ددې مـبـارکـې واقـعـه ده :

جاءت امرأة إلى النبي صلى الله عليه وسلم يقال لها أم خلاد وهي منتقبة تسأل عن ابنها وهو مقتول فقال لها بعض أصحاب النبي صلى الله عليه وسلم جئت تسألين عن ابنك وأنت منتقبة فقالت إن أرزأ ابني فلن أرزأ حيائي فقال رسول الله صلى الله عليه وسلم ابنك له أجر شهيدين قالت ولم ذاك يا رسول الله قال لأنه قتله أهل الكتاب . [1]

تـرجـمـه : یـوه ښځـه رسول الله  تـه راغـلـه چې ام خلاد یـې ورتـه ویـل او پـداسې حـالـت کـې راغـلـه چې پـه نـقـاب کـې وه د خـپـل زوی پـه اړه یـې پـوښـتـنـه کـولـه او هغـه شـهـیـد شـوی وو ځـیـنـې صحـابـه وو ورتـه وویـل : تـه د خـپـل شـهـیـد زوی پـه اړه پـوښـتـنـه کـوې او تـه پـه نـقـاب کـې یـې (د ښځو خو چې څوک مـړه شي هغـه بـیـا جـامـې شکـوي ) دې مـبـارکـې ورتـه وویـل : کـه مـې زوی شـهـیـد شـوی دی زمـا عزت او حـیـاء خو نـه دي مـړه شـوي ...

بـیـا رسـول الله  ورتـه وویـل : سـتـا د زوی لـپـاره د دوو شـهـیـدانـو اجـرونـه دي ...

دې مـبـارکـې و رتـه وویـل : دا ولـې یـا رسـول الله ؟

رسـول الله  ورتـه وویـل : ځـکـه دا د اهـل کـتـابـو پـه لاس بـانـدې شـهـیـد کـړل شـوی دی .

---

[1] رواه ابو داود

نو پداسې حالت کې چې ددې مبارکې خاوند ، ورور، او زوی په شهادت رسېدلې وو دې خپله پرده پداسې توګه ساتلې وه چې صحابه  یې په حال لیدلو باندې حیران شول او هغوی په تعجب کې پوښتنه کوله ...

## تر مرګ وروسته د مړي د بدن سمول

کله چې د انسان څخه ساه ووزي نو سم د لاسه به يې لاس او پښې هموار کړي او ددېنه وروسته به يې په هر څه کې د ولي نه اجازه اخلي کله چې غسل ورکوي او داسې نور .. . د ښځې لپاره اول ولي د هغې خاوند دی بیا هغه کسان دي چې په میراث کې ورته نیږدي وي ..

که تر جنازې پورې يې وخت ډېر وي په ګېډه يې دې څه وسپنه یا لنده خټه په کوم لوښي کې یا بل شی کیږدي چې ونه پړسیږي .

له زمکې نه به يې په لږ لوړ کوم شي کې کیږدي چې د زمکې لوندوالی ورته ونه رسیږي .

تر څومره حده پورې چې کېدلی شي د دوستانو په را خبرولو کې به يې کوښښ وشي ترڅو چې غسل نه وي ورکړل شوی دده په خوا کې به تلاوت نه کیږي مکروه دی .

## که ښځه مړه شوه په ګېډه کې يې ماشوم ژوندی وو

که ښځه وفات شوه او په ګېډه کې يې ماشوم
شوریدو نو امام محمد فرمایي چې ګېډه به يې څیرې کړل شي او ماشوم به ترېنه را وویستل شي بله لاره يې نشته .[1]

کومه ښځه چې حامله وي او وفات شي تر وفات وروسته يې په ګېډه کې ماشوم حرکت کوي او ښکاره کیږي چې هغه لا ژوندی دی دلته دوه شیان دي يو د ښځې د حرمت او عزت ساتل دي او بل د

[1] فتاوی قاضي خان

هغه ژوندي د ژوند ساتل چې په ګېډه کې د ننه دی ...

ځينې علماء دېته ترجيح ورکوي چې بايد د ښځې حرمت او عزت وساتل شي د امام محمد رايه داده چې بايد ګېډه يې وشکول شي او ماشوم ترېنه را وويستل شي ددې رايې د تائيد لپاره علماء فرمايي اول خو داده چې دلته د ژوندي (ماشوم) او مړي (مور) مقابله راغلې ده نو بايد د ژوندي طرف ته ترجيح ورکړو او هغه څه وکوو چې د ژوندي حالت د هغه تقاضا کوي او د يو ژوندي نفس ساتل د يو مړي د حرمت له ساتلو څخه ډېر ضروري دي امام نووي پدې اړه فرمايي : **وإن ماتت امرأة وفي جوفها جنين حي شق جوفها ؛ لأنه استبقاء حي بإتلاف جزء من الميت فأشبه إذا اضطر إلى أكل جزء من الميت.**

ترجمه : که ښځه مړه شوه او په ګېډه کې يې ماشوم ژوندی وو نو ګېډه د وشکوله شي ځکه دا د يو ژوندي ژوند ساتل دي چې په بدل کې يې د مړي يو جز له مينځه ځي نو ددې کول په کار دي لکه يو ژوندی چې د مړي د کوم اندام خوراک ته اړ شي (نو چې هلته د اضطرار حالت وي نو ټول علماء وايي چې خوراک ورته روا کيږي نو همداسې د لته هم) .

خو په هغه صورت کې چې ښځه مړه شي او د ګېډې نه يې ماشوم را ويستل نه غواړي او يا داسې ماهر څوک نه وي چې هغه دا کار وکوي او يا د کومې بلې وجې نه دوی پدې نه وي قادر چې هغه ماشوم ترېنه را وباسي نو تر هغه وخته پورې به دا ښځه همداسې ايښې وي چې ترڅو هغه د ماشوم حرکات ختم شوی نه وي چې د ماشوم حرکات و دريږي او قرار شي او پدې يقين شي چې په ګېډه

کې ماشوم اوس مړ شو نو بیا به د هغې تکفین تجهیز او تدفین وکوي .

... همدارنګه دا اختلاف هغه ځای ته هم ورغلی دی چې یو څوک مړه شي هغه پردۍ نقدې پیسې دراهم او دنانیر تېر کړې وي آیا د مړي ګڼه به پسې شکول کیږي کنه... هلته هم ځینې علماء وایي چې د مړي احترام په کار دی باید دده ګڼه ونه شکول شي او ځینې علماء فرمایي پردی حق په هر حالت کې ورکول په کار دي باید ګڼه یې وشکوله شي او هغه دراهم او دنانیر ورڅخه را وویستل شي .

کله چې ساه تري وزي نو بیا به یوه جامه وربانده خپره کړي چې ټول بدن یې پټ کړي دا هم سنت دي ځکه دی اوس په نوي شکل کی دې نو چې څوک یې ویني بل ډول ورته ښکاره کیږي حضرت عائشه فرمایي : **سُجي رسول الله صلى الله عليه وسلم حين مات بثوب حبرة** .[1]

ترجمه : کله چې رسول الله وفات شو نو په حبرة نومي جامه کې پټ کړل شو .

او که چېرته دا مړی محرم نه وو (ښځه نه وه چې دلته غیر محرم خلق ګرځېدل) نو بیا یې د مخ پټولو ته ضرورت نشته او که یې پټ کړي هم څه ناروا نه ده .

او چې له بهر نه څوک راشي نو که هغه یې اوس کتل غواړي مخ یې پرې لوڅوي او ګوري یې نو څه پرواه پرې نشته همدارنګه که څوک یې ښکلوي (مچي کوي) نو څه ناروا والی پکې نشته حضرت

---

[1] رواه مسلم

عائشه فرمايي : **رأيت رسول الله صلى الله عليه وسلم يقبل عثمان بن مظعون، وهو ميت، حتى رأيت الدموع تسيل** .[1]

ترجمه : ما رسول الله وليدو چې هغه حضرت عثمان بن مظعون پداسي حالت كې ښكل كولو چې هغه وفات وو حتى چې دا مې هم وليدل چې د رسول الله اوښكې روانې وې .

همدارنګه حضرت عائشه د هغه وخت قصه كوي كله چې رسول الله وفات وو او حضرت ابو بكرصديق ورته راغلو دا مباركه فرمايي : **أقبل أبو بكر رضي الله عنه على فرسه من مسكنه بالسنح حتى نزل فدخل المسجد فلم يكلم الناس حتى دخل على عائشة فتيمم النبي صلى الله عليه وسلم وهو مسجى ببرد حبرة فكشف عن وجهه ثم أكب عليه فقبله ثم بكى فقال بأبي أنت يا نبي الله لا يجمع الله عليك موتتين أما الموتة التي كتبت عليك فقد متها.** [2]

ترجمه : حضرت ابو بكر له خپل هستوګنځي نه چې په سنح كې وو راغلو جومات ته لاړو له چا سره يې خبرې ونه كولې د حضرت عائشې كوټې ته ورغلو سيده د رسول الله خوا ته ورغلو هغه په حبرة څادر كې پټ وو مخ يې پرې لوڅ كړو وربانديې ور ښكته شو مچي يې كړو بيا په ژړا شو ورته يې وويل : مور پلار مې لتا زار شه ته په دوه مرګونو بانديې نه مړ كيږې يو مرګ الله تاته ليكلى وو هغه در بانديې تېر شو ..

د خلقو په را خبرولو او په هر ډول چې د مرګ په اعلان كولو كې څه شرعي مانع نشته اعلان د وكوي او خلق دې پرې خبر كړي او كه چېرته

---

[1] رواه ابو داود
[2] رواه البخاري

موجوده خلق داسې څوک وو چې د انساني بدن په اړه او د مرګ او ژوند په اړه يې پورته تجربه نه وه او په يقيني توګه يې فيصله نشوای کولی چې آيا دا کس مړ دی او که بې هوښه دی او که د بيماري په ترځ کې داسې حالت ورته عارض شوی دی چې مړ ښکاره کيږي نو تر هغه وخته پورې د صبر وکوي چې په يقيني توګه باندې ښکاره شي چې دی په حق رسېدلی دی چې څو يې ماهر ډاکټر وګوري او يا له بلې خوا ښکاره شي چې مړ دی ...

او که په يقيني توګه معلومه وه چې مړ دی نو بيا دې په تجهيز او د غسل په تياري باندې تادي وکوي او بيا د وخت همداسې نه تېروي .

## شريعت د جسد قدر کوي

د اسلام مبارک دين انساني جسد ته په ډېره درنده سترګه ګوري او له هغه سره د ادب ، احترام او عزت په معامله کولو باندې امر کوي لکه څرنګه چې الله انسان په ټولو مخلوقاتو کې په ښه شکل پيدا کړی دی او ترڅو چې ژوندی وي دده بدن زيات د قدر وړ دی او هر اندام يې د الله د قدرتونو ښکاره کونکی دی او په هر اندام کې يې د الله بې ساري قدرت ښکاره کيږي په همدې ډول کله چې مړ شي نو اسلام د هغه له سپکاوي کولو نه منع کوي نو ځکه که د کافر جسد هم وي اسلام له دې څخه منع کوي چې هغه د څوک وشکوي ، سره مات د کړي ، اندامونه د ورڅخه پرې کړي ددې امله خو مسلمانان له مُسلې (د مړي شکل ور خرابول) څخه منع کړل شوي دي .[1]

ددې امله خو ځينې فقهاء ددې قائل دي که څوک د مړي کوم اندام ور مات کړي هغه د سزا مستحق دی

[1] قواعد الأحكام في مصالح الأنام

او د هغه ورثه دده په خلاف په محکمه کې عریضه کولی شي او ده ته سزا ورکول کېدلی شي .[1]

پدې اړه حدیث هم راغلی دی چې رسول ﷲ د هغه هډوکي د ماتولو نه سخته منع وکوله کوم چې له خاورو نه راووتلو حضرت جابر فرمایي : **خرجنا مع رسول الله صلى الله عليه وسلم في جنازة، فجلس النبي صلى الله عليه وسلم على شفير القبر وجلسنا معه، فأخرج الحفار عظماً ساقاً أو عضداً فذهب ليكسرها، فقال النبي صلى الله عليه وسلم: لا تكسرها فكسرك إياه ميتاً ككسرك إياه حياً ولكن دسه في جانب القبر.**[2]

ترجمه : موږ له رسول ﷲ سره په یوه جنازه کې لاړو رسول ﷲ د یو قبر په غاړه کېناستو موږ هم ورسره کېناستو کومو کسانو چې قبر ژورولو هغوی یو لوی د پښې یا د بغل هډوکی را وویستلو هغه لاړو چې غوښتل یې مات یې کړي رسول ﷲ ورته وویل : مه ماتوه دا چې ته مړ ماتوې دا داسې ده (په جرم کې) لکه ته چې د ژوندي هډوکی ماتوې بلکه د قبر په خوا کې یې خښ کړه .

نو پدې حدیث کې صریح دلیل موجود دی چې د مړي د هډوکي له ماتولو څخه منع کوي او منع هم په دومره سخت ډول سره ده چې په جرم کې یې د ژوندي انسان د هډوکي له ماتولو سره یو شان ګرځولی دی .

ددې امله خو د قبرونو څخه کفنونه ایستل څرنګه چې په مړي باندې تجاوز کول دي نو هم لویه ګناه ده حضرت عائشه فرمایي :

---

[1] المغني لابن قدامة
[2] رواه ابو داود

سارق أمواتنا كسارق أحيائنا .[1]

ترجمه : زمونږ دمړيو نه غلا كوونكى داسې دى لكه زمونږ د ژونديو نه غلا كوونكى .

همدارنگه په بل ځاى كې امام بيهقي له شعبي نه روايت كړى دى هغه نقل كړي دي **النباش سارق** (كفن كش هم غل دى) همدارنگه امام مالک د رسول ﷲ يو حديث نقل كړى دى هغه فرمايي : **أن رسول الله صلى الله عليه وسلم لعن المختفي (يعني نباش القبور)** (رسول ﷲ په مختفي (هغه چې له قبرونو څخه كفنونه وباسي) لعنت ويلى دى .

نو معنى دا چې مؤمن چې مړ هم شي هماغه عزت او احترام يې په ځاى پاتې دى كوم چې دده په ژوند كې وو او ددې امله به ځينو سلفو ډېر اصرار كاوه چې په داسې هديره كې د دفن كړل شي چې‌ږرته چې ډېر مؤمنان دفن كړل شوي وي .[2]

نو د همدې عزت او عظمت چې اسلام يې يو مړ مسلمان ته وركوي يوه برخه داده چې په ژونديو باندې يې د هغه غسل ، د هغه كفن په هغه باندې مونځ كول او په سمه توگه د هغه خښول لازم كړي دي .

## په تجهيز ، تكفين او تدفين كې بيړه كول

كله چې جنازه تياره شي نو بيا وربانديې بيړه كول سنت دي اكثر خلق تر ډېره وخته پورې جنازه ددې امله ځنډوي چې د كوم لرې راتلونكي مسافر

[1] نصب الراية
[2] احكام الجنائز للالباني

انتظار کوي اکثر د هغه را رسېدل ډېر وخت واخلي او دلته جنازه همداسې پرته وي او په اکثرو ځایونو کې له نېږدې نه ر اغلي مېلمانه هم د هغه لرې په انتظار کې ناست وي دا ټول له شرع خلاف دي شریعت موږ ته امر کوي چې کله جنازه تیاره شي نو بیا وربانديې بیړه کول سنت دي پدې اړه یو حدیث دی : **عَنْ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صلى الله عليه وسلم قَالَ لَهُ " يَا عَلِيُّ ثَلاَثٌ لاَ تُؤَخِّرْهَا الصَّلاَةُ إِذَا آنَتْ وَالْجَنَازَةُ إِذَا حَضَرَتْ وَالأَيِّمُ إِذَا وَجَدْتَ لَهَا كُفْؤًا .** [1]

ترجمه : له حضرت علي بن ابي طالب نه روایت دی هغه فرمایي رسول ﷲ فرمایل : اې علي درې شیان مه وروسته کوه :

١. مونځ چې کله یې وخت شي.

٢. جنازه چې حاضره شوه.

٣. پېغله چې د واده لپاره سیال ورته پیدا شو .

همدارنګه فقهاء کرامو هم پدې تصریح کړېده چې د جنازې وروسته کول مکروه دي لکه صاحب د رد محتار چې وایي :

ترجمه : پدې نیت باندې د جنازې وروسته کول چې خلق را ډیر شي مکروه دي دا وروسته والی څه غوره والی او بهتري نه لري . [2]

په کوم ځای کې چې عذر وي نو جنازه او نور کارونه تر یو څه وخت پورې وروسته کېدلی شي چې دومره اوږد وخت نه وي چې د مړي جسد پکې خراب

---

[1] رواه الترمذي
[2] رد المحتار

شي او بوى وكوي ځكه دا دده بې عزتي كول دي د مثال په ډول د ا كس وژل شوى وي د هغه د وژل كېدو په اړه څه لنډ تحقيق كيږي ، يا دده د مرګ د اسبابو پلټنه كيږي ، يا دده تر مرګ پوري څه نورې خبرې تړلې وي د هغې سپيناوى كيږي نو كه د يو څه وخت لپاره تجهيز او جنازه وروسته شي نو خير دى .

د صحابه وو په وخت كې به هم د مړي په تجهيز كې بيړه كېده .

د حضرت عمر په وخت كې يو ځوان وو چې د ښې تقوى خاوند وو الله ورته داسې تقوى وركړې وه چې حضرت عمر د هغه له تقوى نه متاثر شوى وو او د هغه به هم ډير زيات خوښېدو ددې ځوان عادت وو چې كله به د ماسخوتن له مانځه نه فارغ شو نو سيده به كور ته تلو او د خپل سپين ږيري پلار خدمت به يې كاوه په لاره كې يې د يوې ځوانې بد كارې ښځې كور وو دا ځوان ددې ښځې هم خوښ شوى وو كله به چې دى په لاره تلو نو هغې به ورته خبرې كولې تردې چې بلله ورځ يې دېته رضا كړو چې ددې سره كور ته لاړ شي نو چې څنګه د هغې له دروازې ورننوت نو يو آيت ورپه زړه شو چې الله فرمايي :

إِنَّ الَّذِينَ اتَّقَواْ إِذَا مَسَّهُمْ طَائِفٌ مِّنَ الشَّيْطَانِ تَذَكَّرُواْ فَإِذَا هُم مُّبْصِرُونَ (201) .[1]

ترجمه : بېشكه هغه كسان چې وېرېږي (له الله او ځان ساتي له ګناه) كله چې ورسيږي دوى ته كومه وسوسه (او ګذر) له طرفه د شيطانه نو ياد كاندې دوى (حكم د الله او ويښ شي) پس نا څاپه دوى ليدونكى وي (د حق) .

---

[1] سورة الاعراف

نو ددې آيت له ور په زړه کېدو سره په دې ځوان باندې د الله ويره غالبه شوه او ځای په ځای را وغورځېدو بې هوښه شو ... دې ښځې د خپلې يوې وينځې په مرسته دا ځوان را پورته کړو د هغوی د خپلې دروازې پورې يې ور ورسولو هلته يې واچولو .. لږ وخت چې تېر شو په خپل وخت باندې کور ته و نه رسېدو نو سپين ږيری پلار يې په لټون کې را ووتلو ويې ليدل هغه په دروازه کې بې هوښه پروت دی چاته يې اواز وکولو هغه يې کور ته ننه ايستلو د شپې څه برخه تېره شوه چې ده سترګې خلاصې کړې پلار يې ترېنه پوښتنه وکوله ده مبارک ورته ټوله قصه رښتيا وکوله چې په قصه کې دې آيت ته را ورسېدو نو يو ځل بيا دا آيت ورپه زړه شو بې هوښه وغورځېدو ... چې دوی وښوراوه معلومه شوه چې ځوان په حق رسېدلی وو نو په شپه کې يې تيار کړو غسل يې ورکړو جنازه يې ورباندې وکوله او دفن يې کړو (تر سبا پورې يې انتظار ونه وېسته چې خلق راشي) کله چې سحر شو قصه حضرت عمر ته وکول شوه حضرت عمر يې پلار ته راغلو دعاء او تعزيه يې ورته وکوله بيا يې ورته وويل : زه به مو خبر کړی وم په جنازه کې به مې شرکت کړی وو ... پلار يې وويل : امير المؤمنين شپه وه نه مو غوښتل تاسې ته تکليف درکړو ...

## غسل ورکول

### مړي ته به غسل څوک ورکوي ؟

اول خبره خو داده چې نارينه مړي ته بايد نارينه غسل ورکړي او ښځينه مړيو ته بايد ښځې غسل ورکړي خو کله چې خاوند وفات شي نو ښځه هم غسل ورکولی شي کله چې رسول الله وفات شو هغه وخت حضرت عائشې ته ددې علم نه وو چې ښځه خپل خاوند ته غسل ورکولی شي نو وروسته يې بيا

وویل که زه پدې خبره خبره وای چې ښځه خپل خاوند ته غسل ورکولی شي نو رسول الله ته به یې خپلو بیبیانو غسل ورکړی وو او ددې نه بغیر نور د سړي د سړیو او ښځې د ښځې لپاره غوره دي چې غسل ورکړي خو په سړیو کې به څوک غسل ورکوي د حنفي مسلک له نظره مستحب داده چې هغه غسل ورکړي چې مړي ته په خپلوي کې ډېر نیږدې وي او که د غسل په ورکولو باندې نه پوهیږي نو په خوا کې به نور خلق ورسره وي چې هغه دده لارښونه وکوي او که بیا یې نشي کولی نو ورپسې خپلوان او که په خپلوانو کې یې داسې څوک نه وي چې ده ته غسل ورکړي نو بیا د تقوی او پرهیزګاري خاوندان به ورته راولي هغوی به غسل ورکړي او که مړي د چا په حق کې وصیت کړی وو چې ده ته به غسل فلانی سړی ورکړي نو بیا به هماغه غسل ورکړي لکه حضرت انس بن مالک وصیت کړی وو چې ده ته به غسل حضرت محمد ابن سیرین ورکړي نو هماغه بیا غسل ورکړو خو چې کله عورت ته ورسېدو نو یې زامنو ته وویل راشئ ددې ځای په وینځلو تاسې لماڅخه زیات حقدار یاست عورت یې ورته هغوی وینځلو.

په ځینې ځایونو کې په ښارونو کې د غسل ورکولو لپاره خپل خلق وي هغوی غسل ورکوي هغوی اکثر داسې خلق وي چې د غسل په سنتو او آدابو باندې خبر نه وي او اکثر چې خبر وي نو ددې امله یې رعایت نه کوي چې دا غسل ورکول اوس د هغوی وظیفه شوې وي او زر زر تر ینه ځان خلاصوي نور یې څه پروا نه کوي د غسل کار له هغوی څخه اخیستل غوره خبره نه ده بلکه غوره خبره دا ده چې داسې کسان غسل ورکړي چې هغوی د مرحوم سره همدردي ولري او له خپلوانو څخه یې وي او په غسل کې د ټولو سنتو او ادابو پوره ساتنه وکوي او لکه پورته چې تېر شول که چېرته خپلوان نه وي او یا غسل نه ورکول غواړي نو بیا به تقوی

دار خلق او په ديني مسئلو خبر خلق غسل ورکوي غسل ورکول څه مشکل کار نه دی خو څرنګه چې دا دنياوي کار نه دی بلکه يو ديني کار دی ددې امله د اکثرو خلقو نه وي زده ځکه په خلقو کې کمزوري ده هغوی د ديني خبرو په زده کولو کې دومره کوښښ نه کوي .[1]

او که چېرته په پيسو باندې څوک ورته پيدا کول کيږي چې مرحوم ته غسل ورکړي او هغه ته ددې کار په بدل کې پيسې ورکول کيږي دا هم غوره خبره نه ده اکثر علماء دېته مکروه وايي او د حنفي مذهب په ځينې کتابونو کې ورته ناروا ويل شوي دي لکه امام کاساني چې فرمايي : **ولا يجوز الاستئجار على غسل الميت** (نه ده روا پيسې اخيستل په وينځلو د مړي) .[2]

لکن کله چې دا کس د مرحوم له خپلوانو څخه نه وي او دی بل کار پريږدي ددې غسل ورکولو لپاره نو که بيا دده سره د څه مال په ورکړه سره نيکي کوي نو ښه خبره ده خو معلومه مزدوري به نه وي .

ځينې خپلوان داسې وي چې هغوی هېڅ عذر نه لري خو بيا هم د يو نيږدې خپلوان د مرګ په حالت کې هغه ته له غسل ورکولو نه کرکه کوي دا کرکه نه ده په کار او پداسې وخت کې ځان ته ور يادول په کار دي چې دی به هم يوه ورځ همداسې مړ کيږي او همداسې خپلوانو ته به يې ضرورت وي چې غسل ورکړي او که دی کرکه وکوي او منع وکوي نو بيا به دده پاتې خپلوان هم له ده څخه منع کوي او هغه کس چې په مينه سره خپل وفات پلار ته غسل ورکړي سبا به دده زوی ده ته همدومره په مينه غسل ورکوي .

---

1 فتاوى دار العلوم ديوبند ج ٥ ص ٢٥٤
2 بدائع الصنائع

پدې وخت کې ماته د یوې بوډۍ قصه را یادیږي چې هغه خپل زوی له خپل کور نه بېله کړې وه او په یوه زاړه کور کې یې اوسېدلو ته اړ ایستلې وه تردې چې د هغې د وفات وخت شو د هغه زاړه کور له ګاونډ نه ده ته تلفون راغلو چې ورته ویل یې د مور حالت د خراب دی یو ځل ورته راشه .. کله چې دی لاړو د مور یې آخري سلګۍ وې د ځانکدن په حالت کې یې خپل زوی ته وصیت کولو چې ددې کور لحاظ وساتي او دلته پکه نشته که یوه پکه ولګوي ګرمي ده ... زوی یې حیران شو چې د مور مې دلته عمر تېر شو او پکه یې نه غوښته اوس یې ځانکدن دی اوس پکه د څه لپاره غواړي .. نو دا سوال یې د ننه تم نشوای کړلی مور ته یې وویل : تا دلته دومره وخت تېر کړو تا نه غوښتل چې دلته زه پکه ولګوم نو اوس یې د مرګ په حالت کې د څه لپاره غواړې؟ مور یې ورته وویل : بچیه ... ! دلته ګرمي زیاته وه ما په خپل ځان برداشت کړه خو داسې وخت به راشي چې ته کله زوړ شې نو ستا اولادونه به تا په همدې زاړه کور کې اوسېدو ته اړ کړي بیا به ته دلته اوسې او ستا به ګرمي کیږي زما سره د خپل ځان نه بلکه ستا غم دی .... په دنیا کې چې څوک د خپلو مشرانو سره هر ډول رویه وکوي دده کشران له ده سره هماغه ډول رویه کوي ...

## د مړي په خدمت کې لوی اجر دی

هغه کس چې د میت په تجهیز ، تکفین او تدفین کې کار کوي او مرسته پکې کوي د دوی لپاره لوی اجر دی په یو حدیث کې حضرت رافع فرمایي : رسول ﷺ فرمایل : **من غسل میتا فکتم علیه غفر له أربعون مرة، ومن کفن میتا کساه الله من سندس وإستبرق الجنة، ومن حفر**

لميت قبرا وأجنه فيه أجري له من الأجر كأجر مسكن إلى يوم القيامة. [1]

ترجمه : چا چې مړي ته غسل ورکړو الله به ورته ځلوېښت ځله بښنه وکوي او چا چې مړي ته کفن ورکړو الله به ده ته د جنت جامې ور واغوندي او چا چې مړي ته قبر ژور کړو او هغه يې پکې کېښود الله به ورته دومره اجر ورکړي لکه تر قيامت پورې يې چې چاته د اوسېدلو ځاى ورکړى وي .

په بل حديث کې د حضرت ابي امامة الباهلي نه روايت شوى دى هغه له رسول الله نه روايت کوي چې فرمايل يې : **من غسل ميتا فستره ، ستره الله من الذنوب ، و من كفنه ، كساه الله من السندس .** [2]

ترجمه : چا چې مړي ته غسل ورکړو او د هغه راز يې وساتلو الله به دى له ګناهونو پټ کړي او چا چې کفن ورکړو الله به د سندس له جامو څخه (په جنت کې) جامه ورکړي .

## مړي ته د غسل ورکولو حکم

مړي ته غسل ورکول په اجماع او سنت سره واجب کفايي دى چې يو څه کسان پکې شرکت وکوي نو د نورو غاړه وربانديې خلاصه ده او که بالکل ورنه کړل شو د ټولو خلقو غاړه ورسره بنده ده حضرت عبد الله بن عباس فرمايي : **بَيْنَمَا رَجُلٌ وَاقِفٌ بِعَرَفَةَ إِذْ**

[1] رواه الحاكم
[2] الصحيح الجامع

وَقَعَ عَنْ رَاحِلَتِهِ فَوَقَصَتْهُ ، أَوْ قَالَ : فَأَوْقَصَتْهُ . قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ : اغْسِلُوهُ بِمَاءٍ وَسِدْرٍ وَكَفِّنُوهُ . [1]

کله چې یو سړی په عرفات کې ولاړ وو له خپلې سپرلۍ نه را وغورځېدو او مړ شو او یا یې مړ کړو رسول الله وفرمایل : ده ته د سدر په اوبو سره غسل ورکړئ او کفن ورکړئ .

## د مړي د غسل شرطونه

د مړي د غسل شرطونه په دوه ډوله دي یو هغه چې تر غسل پورې تړلي دي او بل هغه چې تر غسل کونکي پورې تړلي دي ...

هغه چې په غسل پورې تړلي دي هغه دادي چې ..

د ټولو علماوو اجماع ده چې مړي ته به غسل په اوبو سره ورکول کیږي ترڅو چې د اوبو د استعمال نه څه مانع او عذر نه وي .

هغه اوبه چې مړي ته وربانديې غسل ورکول کیږي باید پاکې اوبه وي لکه په اوداسه او نورو پاکیو کې چې ضروري دي .

دا اوبه باید مباح وي د غلا اوبه نه وي ، غصب شوې اوبه نه وي او داسې اوبه نه وي چې د بل چا وي او د هغه د اجازې نه بغیر را اخیستل شوې وي لکه حضرت عائشه چې په یوه جامع حدیث کې فرمایي رسول الله فرمایل : مَنْ عَمِلَ عَمَلاً لَيسَ عَلَيهِ أَمْرُنَا فَهُوَ رَدٌّ . [2]

---

1 متفق علیه
2 رواه مسلم

ترجمه : چا چې داسې يو كار وكولو چې په هغه باندې زموږ امر نشته هغه كار رد دی .

## د غسل وركوونكي شرطونه

په غسل وركوونكي كې شرط دي چې هغه به :

مسلم وي : كافر نشي كولی يو مسلمان مړي ته غسل وركړي وجه يې علماوو ويلې ده : **لأن الغسل عبادة تحتاج إلى نية ، والكافر لا تصح منه النيَّة.** (ځكه مړي ته غسل وركول يو عبادت دی او هر عبادت ته د نيت ضرورت وي او عبادت ته د كافر نيت نه صحيح كيږي) .

عاقل به وي : ځكه هغه چې عاقل نه وي هغه دومره اوږد كار په سمه توګه نشي كولی علماوو يې وجه ويلې ده : **لأن المجنون فاقد للأهلية فلا تصح منه النيَّة** (ځكه هغه چې ليونی وي په هغه كې د عبادت اهليت نه وي نو له هغه څخه د عبادت نيت نه صحيح كيږي) .

هوښيار به وي : يعني په غسل وركونكي كې لازمه ده چې هغه به هوښيار وي بيا كه بالغ نه وي نو خير دی بلوغ پكې ضروري نه دی چې يو داسې ماشوم وي چې هغه په ښه او بد پوهيږي هوښيار وي نو هغه هم كولی شي مړي ته غسل وركړي وجه يې علماوو ويلې ده : **لأن المميِّز يصح غسله لنفسه ، فصح غسله لغيره** (ځكه هوښيار ماشوم چې خپله غسل كوي هم نو شرعي غسل يې صحيح كيږي نو همدارنګه چې بل چاته غسل وركوي هم صحيح كيږي) .

**معتمد به وي :** په غسل كونكي كې مستحب داده چې داسې كس وي چې هغه د اعتماد وړ كس وي او امين وي ترڅو وربانديې انسان دومره اعتماد وكولى شي چې دى هغه رازونه پټ ساتي كوم چې د مړي په هكله ورته د غسل په دوران كې ښكاره كيږي .

**پوه به وي :** همدارنګه غسل وركونكى بايد په ټولو هغه احكامو خبر وي چې پدې غسل كې ورته ضرورت لري او كه نه وي نو بايد بل كس يې لارښوونه وكوي .

## غسل ورکونکی باید متوجه وي

مړي ته د غسل ورکولو په وخت کې باید لاندې کارونو ته پوره توجه وشي ..

### ۱. د مړي عورت پټ ساتل

په غسل ورکونکي باندې لازم دي چې هغه د مړي عورت پټ وساتي او عورت د نو (نوم) نه تر زنګون پورې دی له حضرت علي نه روایت دی هغه له رسول الله نه روایت کوي چې هغه فرمایل : **لا تُبْرِزْ فَخِذَكَ وَلا تَنْظُرْ إِلَى فَخِذِ حَيٍّ وَلَا مَيِّتٍ** . [1]

ترجمه : خپل ورون مه ښکاره کوه او د بل چا ورون ته هم مه ګوره که مړ وي او که ژوندی وي .

### ۲. په لاس باندې ټوټه تاوول

کله چې مړي ته استنجاء ور وهي نو باید په لاس باندې څه ټوټه یا بل شی ورته تاو کړي لکه چې پردي عورت ته کتل روا نه دي همدا رنګه پردي عورت ته لاس وروړل هم روا نه دي له حضرت عبد الله بن الحارث نه روایت دی هغه فرمایي : **غَسَّلَ النَّبِيَّ صَلَّى الله عَلَيهِ وَسَلَّمَ عَلِيٌّ وَعَلَى النَّبِيِّ صَلَّى الله عَلَيهِ وَسَلَّمَ قَمِيصُهُ وَعَلَى يَدِ عَلِيٍّ خِرْقَةٌ يَغْسِلُهُ بِهَا يُدْخِلُ يَدَهُ تَحْتَ القَمِيصِ فَيَغْسِلُهُ وَالقَمِيصُ عَلَيهِ** . [2]

ترجمه : رسول الله ته غسل ورکړل شو او په رسول الله باندې د هغه قمیص مبارک موجود وو او د حضرت علي په لاس باندې یوه ټوټه پېچل شوې وه

---

[1] **رواه ابو داود**
[2] **رواه ابن ابي شيبة**

بیا به یې لاس تر قمیص مبارک لاندې ور ننه ایستلو او د رسول الله قمیص مبارک هم په ځان وو .

حضرت ابن سیرین فرمایي : **غَسَّلْتُ أَنَسَ بن مَالِكٍ ، فَلَمَّا بَلَغْتُ عَوْرَتَهُ ، قُلْتُ لِبَنِيهِ : أَنْتُمْ أَحَقُّ بِغَسْلِ عَوْرَتِهِ ، دُونَكُمْ فَاغْسِلُوهَا ، فَجَعَلَ الَّذِي يَغْسِلُهَا عَلَى يَدِهِ خِرْقَةً وَعَلَيْهَا ثَوْبٌ ، ثُمَّ غَسَلَ الْعَوْرَةَ مِنْ تَحْتِ الثَّوْبِ .** [1]

ترجمه : ما حضرت انس بن مالک ته غسل ورکولو کله یې چې عورت ته ورسېدم ما یې زامنو ته وویل : لما نه تاسې د هغه د عورت په وینځلو ډېر حقدار یاست راشئ دا لږ ځای تاسې ووینځئ هغه کس چې عورت یې وینځلو په لاس یې ټوټه ورته و پېچله او په هغه باندې جامه وه او د هغه مبارک عورت یې تر جامه لاندې ووینځلو .

## ۳. د نجاست پاکول

کله چې څوک مړي ته غسل ورکوي نو دا به یې په ذهن کې وي چې د غسل نه لوی مقصد د نجاستونو پاکول دي او پدې کې به زیات کوښښ کوي چې د مړي په بدن باندې هېڅ ډول نجاست پاتې نشي ددې امله خو به یې وروسته د غسل په طریقه کې راشي چې مړی به لږ را کېنول شي اوپه ګېډه به یې ورو لاس ښکته لور ته کش کړل شي که له معدې نه یې د وتلو څه شی وي هغه به تري ووزي بیا به هغه هم ووینځل شي په همدې ډول که د مړي په بدن پورې نور څه نجاست لګېدلی وو په ښه توګه به یې تریېنه پاک کړي .

## غسل به څو ځله ورکوي؟

---

[1] رواه الطبراني في الكبير

ضروري يو ځل غسل ورکول دي که يو ځل غسل ورکړل شو او يا يو ځل په روانو اوبو کې تخته کړل شو بېرته را وويستل شو هم غسل يې شوی دی لکن تر دريو ځلو پورې تکرار يې سنت دی نو چې څه مشکل نه وي لږ تر لږه دری ځله به غسل ورکړي او چې څه مشکل نه وي که تر دريو وارونو کم غسل ورکړل شي نو مکروه دی کله چې د رسول ﷺ لور مبارکه وفات وه حضرت عطية فرمايي رسول ﷺ موږ ته ښودله چې هغې مبارکې ته غسل څنګه ورکړو نو رسول ﷺ موږ ته وويل : **اغسلنها ثلاثاً أو خمساً أو سبعاً أو أكثر من ذلك وتراً إن رأيتن بماء وسدر ...** [1]

ترجمه : دری ځله يې ووينځئ ، يا پنځه ځله او يا اوه ځله او يا تردې هم زياته که تاسې ته ښه ښکاره شوه په اوبو او سدر سره ..

---

[1] **متفق عليه**

# د غسل طريقه

د غسل لپاره به يې داسې کيږدي چې څنګه يې په قبر کې ايږدي او يا چې څنګه ورته اسانه وه هغه شان يې دې کيږدي چې د غسل ورکولو وخت يې شو نو جامې به ترېنه وباسي .

د غسل ځای ته به پرده ووهي چې صرف هغه کس چې غسل ورکوي او هغه چې ورسره مرسته کوي هغوی ته به ښکاره کيږي .

په عورت غليظه باندې به يې څه ټوټه ور واچوي چې نه ښکاره کيږي.

لکه مخکې چې تېر شول هغه کس چې غسل ورکوي په لاس به څه ټوټه تاو کړي او تر هغه ټوټې لاندې چې په شرمګاه يې ور اچولې لاندې به لاس ننباسي استنجاء به ور ووهي دا مستحب ده .

چې ضرورت يې نه وي غسل ورکونکی به يې زنګنونو او نورو د عورت ځايونو ته نه ګوري .

بيا به ورته داسې اودس ور وکوي لکه مانځه ته چې اودس کوي او که داسې ماشوم وو چې تر اوسه لا په مانځه نه وو دريدلی نو د اودس ورکولو ضرورت يې نشته .

# په اوداسه کې به يې د مخ د وينځلو نه شروع وکوي .

اول به شي اندامونه ور وينځي په خوله او په پوزه به اوبه نه ور تېروي همدارنګه د سر مسح يې هم نشته .

د سر او د نارينه مړي دږيرې وېښته دې په صابون يا په بل دېته ورته پاکونکي شي باندې ووينځي ترڅو ښه پاک شي .

بيا به يې په چپ طرف څملوي او اوبه به وربانديې واچوي ترڅو چې يقيني کړي چې اوبه ترېنه ښکته لور ته ورسېدې نو به يې په ښي اړخ څملوي او په همدې ډول به اوبه وربانديې واچوي.

بيا به يې سر طرف لږ را پورته کړي او په ګېډه به يې ورو لاس کش کړي که کوم شی ترې وزي نو ترېنه وبه وزي او د کفن د ګنده کېدلو احتمال به کم شي که کوم شی ترېنه ووتل صرف هغه به ووينځي د غسل يا اوداسه را ګرځول ضروري نه دي.

د مړي ږيره او يا وېښته ګمنځ کول يا يې د تخرګونو او شرمګاه وېښته لرې کول او يا يې نوکان اخستل ضروري نه دي .[1]

که د مړي په مخ يا پوزه کې يا غوږ کې يا په بل کوم ځای کې پخته ور ايږدي نو ناروا نه دي .[2]

کوم مړی چې په اوبو کې پيدا کړل شو چې را ويستل شي هغه ته به هم غسل ورکول کيږي او که

---

[1] **محيط السرخسي**

[2] **التبيين**

چېرته د را ویستلو په وخت کې په اوبو کې د غسل په نیت و ښورول شو نو بیا ضروري نه دی چې غسل ورکړي.[1]

## مختلفې مسئلې

که د مړي بدن خراب شوی وو او لاس ور باندې نه وهل کېدلو یا یې ددې وېره وه چې د لاس لګولو سره به یې غوښې و ریږیږي نو صرف اوبه دې وربانديې واچوي.

هغه ماشوم چې پیدا شي او د پیدا ئښت په وخت کې اواز وکوي او یا داسې حرکت وکوي چې تر ینه معلوم شي چې دا ماشوم ژوندی دی نو نوم به وربانديې کیږدي غسل به ورکړي او مونځ به وربانديې وکوي او که یې اواز نه وو ویستلی نو په یوه ټوټه کې به تاو کړل شي مونځ نه وربانديې کیږي او غسل به ورکړل شي.[2]

او پدې اړه چې ماشوم د پیدا کېدلو نه وروسته څه اواز وویستلو او یا یې حرکت وکولو د هغې ښځې قول په ګواهي کې کافي دی چې د پیدا کېدلو په وخت کې د ماشوم کتنه کوي او له مور سره د ماشوم په پیدا کولو کې مرسته کوي.

هغه نیمګړی نقصان شوی ماشوم چې پداسې حالت کې پیدا شي چې اندامونه یې لا پوره نه وي جوړ شوي هغه به وويني او په یوه ټوټه کې به یې تاو کړي او خښ به یې کړي .[3]

که یو مړی پیدا شو او دا نه وه معلومه چې مسلمان دی که کافر که د اسلام کومه نښه ور

---

1. محيط السرخسي
2. عالمګيري
3. فتاوى قاضي خان

باندې وه نو مونځ به وربانديې وشي او د مسلمان مړي رويه به ورسره وشي او همدارنګه که د مسلمانانو د کورنو په چاپېريال کې پيدا شو نو مسلمان به ګڼل کيږي.

که څوک د بغاوت په حالت کې يا د لارې د پرې کولو (غلا کولو) په حالت کې مړکړل شي په هغه به مونځ نه کيږي او نه به غسل ورکول کيږي.

مړي ته د غسل ورکولو په وخت غوره خبره ده چې هغه کس غسل ورکړي چې دده نږدې خپلوان وي او که هغه نشواى کولى نو بيا ښه خبره ده چې تقوى لرونکى څوک ورته غوره کړي .

که د غسل ورکولو په وخت کې غسل کونکى جنب او يا حائضه وي نو غسل ورکول مکروه دي او که صرف اودس يې نه وو نو بيا مکروه نه دي .

غسل کونکى چې په مړي کې کوم ښه صفات ووينې لکه د مخ ځلا د بدن ښه بوى او داسې نور نو مستحب ده چې خلقو ته وواېي او که ددې په عکس يې پکې بد صفتونه وليدل نو پټول يې مستحب دي او ښکاره کول يې او خلقو ته يې قصه کول مکروه دي.

که د غسل په وخت کې د غسل د ځاى سره نږدې د خوشبويي انتظام وکوي نو غوره خبره ده که د مړي د بدن نه کوم بوى پورته کيږي نو غسل ورکونکى او ورسره مرسته کونکي خلق به د کار څخه نه ستومانه کيږي.

هغه څوک چې غسل ورکوي د هغه لپاره غوره خبره داده چې بې پيسو يې ورکړي لکن که بيا هم ده پيسې غوښتلې که دده نه بغير دلته داسې څوک وو چې غسل يې ورکولى شول نو ده ته پيسې اخستل روا دي او که دده نه بغير څوک نه وو نو بيا

ده ته روا نه دي چې دی وربانديې پيسې واخلي ځکه بيا خو دده وظيفه ده او په ده باندې کول يې لازم ګڼل کيږي.[1]

ښځې ته به نورې ښځې او سړي ته به نور سړي غسل ورکوي او سړي ښځې ته او ښځې سړي ته غسل نشي ورکولی که داسې وړوکې ماشومه وه چې عمر يې ډېر کم وو او اجنبي سړی يې چې ويني اشتها ورته نه راځي نو بيا که سړی ورته غسل ورکړي نو خير دی او همدارنګه که وړوکي ماشوم ته ښځه غسل ورکړي نو خير دی .

خاوند چې مړ شي ښځه غسل ورکولی شي ځکه دا اوس هم د عدت تر تېرېدلو پورې لا بل خاوند نشي کولی ګواکي چې تر اوسه پورې د هغه نکاح تر تاثير لاندې ده او کله چې ښځه مړه شي نو خاوند ورته غسل نشي ورکولی.[2]

که کافر مړ شو او دده خپلوان مسلمان وو نو هغه ته به غسل ورکړي داسې غسل به نه ورکوي لکه موږ يې چې مسلمان مړي ته ورکوو بلکه داسې به يې وينځي لکه مرداره جامه چې څنګه وينځي او په يوه ټوټه کې به يې تاو کړي او خښ به يې کړي په قبر کې به يې هم په سنت طريقه نه ايږدي صرف پکې ور وبه يې غورځوي.

## غسل کونکی به راز پټ ساتي

هغه غسل کونکی چې په ميت کې څه د راز خبرې ويني هغه به ټولې پټې ساتي او هيچا ته به يې نه کوي همدارنګه هغه کس چې له غسل کونکي سره مرسته کوي د غسل کار به په اخلاص سره کوي او که کوم مکروه شی يې تر نظر تيريږي له دوی نه

---

1 الظهيرية
2 السراج الوهاج

بـغـيـر بـه بـل هېڅوک وربـانـدې نـه خـبـريـږي او چې داسې کـار څوک وکـوي د الله پـه وړانـدې د زيـات اجر مـسـتـحق ګـرځي حضرت رافـع فـرمـايـي رسول الله فـرمـايـل : **من غسل ميتا فكتم عليه غفر له أربعون كبيرة.** [1]

تـرجـمـه : چا چې مـړي تـه غسل ورکـړو او بـيا يـې د هغـه رازونـه خـونـدي وسـاتـل الله بـه ورتـه څـلـوېښت لـوی ګـناهـونـه مـعـاف کـړي .

[1] رواه الـطـبـرانـي

## د غسل ورکولو نه وروسته غسل

کله چې څوک مړي ته غسل ورکړي نو ځينې خلق وربانديې غسل واجب بولي دا وجوب نشته بلکه که د چا په بدن بانديې مستعملې اوبه لګېدلې وي او ور يادشوې وي نو که بيا څوک غسل وکوي دا مستحب دی .[1]

د صحابه وو په وخت کې به هغوی په اوداسه بانديې فتوی ورکوله او دا به يې هم مستحب ګڼلو چا به چې مړي ته غسل ورکړو بيا به يې ورته ويل : چې داسې اودس د وکوي لکه څوک يې چې د مانځه لپاره کوي او دا اودس څکه کول غوره خبره ده چې ځينې علماء يې لازم ګڼي او ځينې يې صرف مستحب مني نو چې وکول شي نو له اختلاف نه به خبره ووزي .

## مړي ته کفن ورکول

کله چې يو مسلمان مړ شي نو په نورو مسلمانانو بانديې لازمه ده چې هغه ته کفن ورکړي لکه حضرت عبد الله بن عباس چې فرمايي : **بَيْنَمَا رَجُلٌ وَاقِفٌ بِعَرَفَةَ إِذْ وَقَعَ عَنْ رَاحِلَتِهِ فَوَقَصَتْهُ ، أَوْ قَالَ : فَأَوْقَصَتْهُ . قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ : اغْسِلُوهُ بِمَاءٍ وَسِدْرٍ وَكَفِّنُوهُ .**[2]

ترجمة: کله چې يو سړی په عرفات کې ولاړ وو له خپلې سپرلۍ نه را وغورځېدو او مړ شو او يا يې مړ کړو رسول الله وفرمايل : ده ته د سدر په اوبو سره غسل ورکړئ او کفن ورکړئ .

---

[1] فتاوی دارالعلوم ديوبندج٥ص٢٥٣
[2] متفق عليه

په پورتني حديث کې رسول الله امر وکولو چې غسل ورکړئ او بيا ورته کفن ورکړئ ..

په کفن کې غوره خبره داده چې له هغه مال او له هغه پيسو نه يې ورته ورکړي چې د ميت خپل وي او که د مړي نه نور هېڅ نه وي پاتې شوي صرف دومره پيسې ترې پاتې وي چې په هغې باندې ايله يو کفن کيږي نو نور ټول ضرورتونه د شاته پريږدي اول د پرې کفن واخلي او ترڅو چې کېداى شي د بل چا په مال او د بل چا په مال باندې په اخيستل شوي کفن کې به يې نه خښوي د اسلام په اول کې چې صحابه وو ډېره بې ساري قرباني ورکوله په هغوى کې يو حضرت مصعب بن عمير وو دا په مکه کې د مالدارو ځوانو په ډله کې وو لکن ده چې اسلام قبول کړو له هرڅه نه لاس په سر شو او دين يې خپله ټوله سرمايه وګڼله او يوازې د دين کار يې خپل کار و ګڼلو پداسې حالت کې په اُحد کې په شهادت ورسېدو چې صرف يو څادر ورڅخه پاتې وو د هغه څادر دا حال وو چې کله دى شهيد وو چې وربانديې به واچول شو چې سر به يې پټ کړل شو نو پښې به يې لوڅې شوې او چې پښې به يې پکې پټې کړل شوې نو سر به يې لوڅ شو ... پدې وخت کې رسول الله داسې هم کولى شواى چې د بل چا نه يې څادر غوښتى واى چې په هغه مبارک بانديې يې اچولى واى لکن رسو الله وفرمايل : **ضعوها مما يلي رأسه واجعلوا على رجليه الأذخر** .[1] (سر يې پکې پټ کړئ او په پښو باندې يې اذخر (يو ډول واښه وو چې په مدينه منوره او مکه مکرمه کې شنه کېدل) واچوئ يعني سر طرف يې په څادر کې پټ کړئ او په پښو باندې يې واښه ور واچوئ همدومره کفن يې بس دى ... نو رسول الله په هغه باندې هماغه ټوټه د کفن په ډول واچوله چې له ده نه خپله پاتې شوې وه .

---

[1] رواه البخاري

## لوی کفن مستحب دی

که چېرته سهولت وي نو کفن چې لوی وي ترڅو په ټولو طرفونو کې مړی په ښه توګه پکې پټ شي دا مستحبه ده او که چېرته حالات ښه نه وو او زیات رخت نه پیدا کېدو نو بیا خو خیر دی حضرت جابر فرمایي : رسول الله یوه ورځ خطبه ویله (نصیحت یې کاوه) په خپله خطبه کې یې یو کس یاد کړو چې وفات شوی وو بیا ورته وړوکی کفن ورکړل شوی وو او د مانځه نه بغیر خښ کړل شوی وو رسول الله پرېي خلقو ته سر ټکونه ورکړه (چې ولې هغه بغیر د مانځه نه دفن کړل شو) او بیا یې مخکې وویل : **إذا كفن أُحدكم أخاه فليحسن كفنه إن استطاع** [1] .

ترجمه : کله چې تاسې کوم ورور ته کفن ورکولو نو ښه کفن د ورکړي که یې په وس کې وه .

ددې حدیث په معنی کې علماء فرمایي : مطلب یې دادی چې کفن پاک وي ، طاهر وي ، بدن پټونکی وي او مطلب یې دا نه دی چې کفن باید له قیمتي ټوټې نه جوړ وي لکه بعض خلق چې فکر کوي چې د کفن ښه والی دا دی چې مړي ته له قیمتي ټوټې نه کفن جوړ کړل شي او پدې اړه که څومره زیات مصرف کیږي مړي ته ترې هېڅ فایده نشته او دا په اسراف کې راځي .

## کله چې رخت کم وي او مړي ډېر وي

که چېرته داسې حالت راشي چې په کومه حادثه کې ډېر کسان په حق ورسیږي او د سختو حالاتو له امله هر یو ته بېل بېل کفن ورکول مشکل وي نو بیا د څو کسان په یو ځای په ټوټه کې پټوي او

---

[1] رواه مسلم

کله یې چې ایږدي هغه کس به قبلې ته نیږدې کوي چې ډېر قرآن کریم ورته زده وي او هغه کس چې دین دار وي هغه به د قبلې لور ته نیږدې کوي او پدې ډول به دری یا څلور په یو ځای ځملوي او ټوټه به پرې اچوي کله چې د اُحد په غزا کې اویا کسان صحابه کرام شهیدان شوې وو نو رسول الله په همدې ډول کفن کړي او دفن کړي وو .

## په کفن کې سپین رنګ مستحب دی

که اضطراري حالت نه وي نو د کفن لپاره به سپین رنګ رخت انتخابوي او کله چې حالات اضطراري وي او انسان خپل اختیار ته نه وي پاتې نو چې هرډول رخت پیدا شي په هغې کې دي تاو کړي رسول الله فرمایي : **البسوا من ثيابكم البياض فإنها خير ثيابكم وكفنوا فيها** .[1]

ترجمه : په جامو کې سپینې جامې واغوندئ دا ستاسې په جامو کې غوره جامې دي او په همدې کې خپلو مړیو ته کفنونه ورکړئ .

---

[1] رواه ابو دواد

# دری ټوټې کفن مستحب دی

په کفن کې مستحب دي چې دری ټوټې وي چې حالات ښه وي نو تردې باید کم نه وي او که نور د انسان څومره په وس پوره وي او که مړی څومره د قدر وړ وي باید تردې ورته زیات نه کړل شي د رسول الله د کفن په اړه حضرت عائشه فرمایي :
إن رسول الله كُفن في ثلاثة أثواب يمانية بيض من كرسف – كالقطن – ليس فيها قميص ولا عمامة أدرج فيها إدراجا .[1]

ترجمه : رسول الله ته د دریو یماني سپینو ټوټو نه کفن جوړ کړل شو چې یو ډول رخت وو لکه پخته داسې په هغې کې نه قمیص وو او نه لنګی رسول الله پکې وپېچل شو .

د رسول الله د وفات په وخت کې مسلمانان په طاقت کې شوي وو که دوی غوښتي وای نو رسول الله ته یې له پنځو ، اوو او زیاتو جامو څخه هم کفن کولی شوای لکن صرف له دریو ټوټو څخه یې ورته وکولو نو ددې معنی داده چې څوک څومره معزز شي نو د کفن آخري اندازه همدا دری ټوټې دي تفصیل او طریقه یې وروسته را روان دي ان شاء الله .

[1] رواه البخاري

# د کفن له ټوټې نه جای نماز جوړول

په ځینې ځایونو کې رواج دی چې د کفن لپاره رخت یو څه زیات راوړي او بیا چې له کفن څخه پاتې شي له هغې نه وړې وړې ټوټې بېلې کړي په جنازه کې یې د څه محترمو خلقو او د امام مخې ته واچوي پدې معنی چې دا د دوی لپاره جای نمازونه دي او دا دهغې خلقو لپاره یوه د قدر وړ خبره بولي او د امام لپاره هغه ټوټه بالکل ضروري حق ګڼل کیږي دا هم یو غلط رواج دی د کفن له مصارفو سره ددې اضافي رخت هېڅ تعلق نشته او دا رواج په سلفو کې نه وو او نه د رسول ﷺ له کفن څخه څه رخت د جای نمازونو لپاره اخیستل شوی وو نو د کفن په مصرف کې دا جای نمازونه اخیستل هم غلط دي او د مړي له پاتې پیسو نه دا صدقه کول هم غلط دي او یو غلط رواج دی چې په خلقو کې عام شوی دی له شریعت سره یې څه تعلق نشته .[1]

# په مړي رجائي اچول

په ځینې ځایونو کې په مړي باندې داسې رجائي له کفن د پاسه ور اچوي چې په هغې باندې کلمې ، آیتونه او نور مقدس الفاظ لیکل شوي وي ددې اچول خو نه کوم سنت او مستحب عمل نه دی او نه لدې څخه مړي ته کومه فایده شته ددې سره سره چې پدې کې د کلمې بې عزتي او توهین کیږي کوم چې له شریعت خلاف دی او شریعت موږ ته د ټولو شعائر الله د تعظیم حکم کوي .[2]

---

1 احسن الفتاوی ج ١ ص ٣٧٩
2 فتای محمودیه ج٢ ص ٤٠١

# نارینه او ښځینه کفن

د نارینه لپاره سنت کفن قمیص، ازار او لفافه دي او که سختي وه رخت نه پیدا کېدو نو بیا ورته لفافه او ازار هم کفایت کولی شي.[1]

ازار : دا یوه جامه وي چې مړی له سر نه تر پښو پورې پکې پټ شي .

لفافه : هم همداسې جامه ده چې مړی به له سر نه تر پښو پورې پکې پټ شي.

قمیص : دا یوه جامه ده چې مړی د غاړې نه تر پښو پورې پکې پټ شي[2]

په قمیص کې به جیبونه، لستوڼي ، ځاکونه و غیره نه جوړوي صرف داسې به یې جوړ کړي چې سر یې ترېنه بهر شي او نور ځان یې تر قدمونو پورې پکې پټ شي .

د زنانه وو لپاره کفن پنځه ټوټې سنت دي .

قمیص: هماغه اندازه قمیص دی چې د نارینه په کفن کې تېر شو .

ازار: لکه مخکې چې تېر شو دا یوه ټوټه ده چې له سر تر پښو پکې مړی پټ شي

ټکری: د قمیص نه وروسته یې په زنانه مړي ور اچوي چې مخ یې هم پکې پټ شي .

---

[1] کنز الدقائق
[2] هدایة

**لفافه:** تر ټولو لویه ټوټه وي چې د ټولو ټوټو په سر ور آغوستله کیږي

**سینه بند:** یوه بله ټوټه وي چې په سینه یې کلکه ور وتړي .

او که چیرته ضرورت وو او د رخت پیدا کېدل مشکل وو نو ازار، ټکرى، لفافه کفایت کوي او ترڅو چې سخت ضرورت نه وي نو د ښځې ته به دوه ټوټې او سړي ته به یوه ټوټه کفن نه ورکوي.

هغه ماشوم او ماشومه چې بلوغ ته نیږدې وي حکم یې د بالغ دى او که ما شوم وړوکى وي نو د هغه د نارینه لپاره یوه ټوټه او د ماشومې لپاره دوه ټوټې کفن هم کفایت کوي.

کفن صرف د تافتې نه جوړول ضروري نه دي بلکه د ښه رخت نه به یې ورته جوړوي.[1] د هغه رخت نه به یې ورته جوړوي چې ده به په ژوند کې آغوستلې د زنانه لپاره به هم کفن له داسې جامې نه جوړوي چې دې به په ژوند کې د ښو جامو په ډول جوړولې.[2] د کفن رنګ سپین او د پختې (مالوچو) د رخت نه مستحب دى.

د کفن څخه وړاندې د سړي په بدن وېښتو او ږیره کې ورته خوشبویي لګول مکروه نه دي زعفران لګول وربانديې مکروه دي.

---

[1] عالمګیري
[2] عالمګیري

# د کفن ورکولو طریقه

قمیص به اوږده ټوټه وي په مینځ کې به یې قات کړي او د سر د ننه ایستلو لپاره به پکې ځای جوړ کړي لکه په راتلونکي شکل کې ښکاره کیږي.

اول به لفافه بیا ازار او بیا قمیص په راتلونکي ډول په همواره زمکه خپاره کړي:




د قمیص د دوه پټونو څخه به یو پټ پورته کړي .




هغه پورته شوی طرف به سر طرف ته تول پرېږدي




او یا به یې سره ونغاړي .

مړی به د قمیص د یوې ټوټې په سر پداسې ډول ور کیږدي چې هغه بله ټوټه وربانديې په سر را واچوي نو سر یې تر هغه سوروي ووزي چې مخکې یې ورته

پکې جوړ کړی دی .



د قمیص پورته شوې برخه به وربانديٰ را هموار ه کړي .

اول به د چپ (ګس) طرف نه بیا د ښي طرف نه به




ازار وربانديٰ را ونغاړي .



د ټولو نه په آخر کې به لفافه اول د چپ طرف نه بیا د ښي طرف نه را ونغاړي او که د خلاصېدلو یا د کفن د خپرېدلو خطر وو نو په سر او پښو کې به یې په ټوټه وتړي .



نکته : د زنانه په کفن کې دوه ټوټې زیاتې دي یوه سینه بند او بله ټکرى ټکرى به د قمیص نه د پاسه واچوي بیا به ازار اول د چپ بیا د ښي طرف نه را ونغاړي بیا به لفافه په همدې ډول وربانديې را ونغاړي او په آخر کې به په سینه بند بانديې د ټولو کفنونو په سر د سینې ساحه وتړي.[1]

د ښځې وېښته به دوه برخې کړي یوه برخه په یو او بله به په بل طرف په سینه بانديې د قمیص د پاسه را پرېږدي.

---

[1] عالمګیري

که څوک مړ شي او د کفن پیسې ورځخه نه وې پاتې شوې نو کفن یې په هغه چا دی چې په چا یې نفقه وي او که د هغوی سره هم پیسې نه وي نو بیا به یې د تکفین او تجهیز مصارف له بیت المال څخه کیږي .

## په مړي پسې ژړا کول

کله چې د انسان کوم نیږدي خپلوان او یا دوست او یا کومه لویه هستي مړه شي نو په هغه باندې خفه کېدل او غمجن کېدل د انساني فطرت او بشریت تقاضا ده انسان وربانديې خفه کیږي ، ځوریږي او د اسلام له نظره ترڅو چې لدې سره بل کوم ناروا شی ملګری شوی نه وي دا ناروا نه دي رسول الله فرمایي : **فَإِنَّهُ مَهْمَا يَكُنْ مِنَ الْعَيْنِ وَالْقَلْبِ فَمِنَ اللَّهِ وَمِنَ الرَّحْمَةِ ، وَمَهْمَا يَكُنْ مِنَ اللِّسَانِ وَمِنَ الْيَدِ فَمِنَ الشَّيْطَانِ .** [1]

ترجمه : بېشکه دا د خفګان ښکاره کول چې له سترګې نه وي (اوښکه تري لاړه شي) او یا له زړه نه وي (زړه غمجن شي) دا له الله نه دی (هغه د انسانانو په زړونو کې نرم والی ور اچولی دی) او دا له رحمت نه دی او کله چې دا له ژبې نه وي (په ژبه انسان فریاد کوي او چیغې وهي) او یا له لاس نه وي (مخ وهي ، ځان وهي ، جامې شکوي) دا له شیطان څخه وي .

## رسول الله د سعد بن عبادة په حال ژړلي وو

حضرت عبد الله بن عمر فرمایي : حضرت سعد بن عبادة بیمار وو رسول الله راغلو پوښتنه یې کوله حضرت عبد الرحمن بن عوف ، سعد بن ابي

[1] **رواه امام احمد في مسنده**

وقاص او عبد الله ابن مسعود هم ورسره وو کله چې ور ننوتلو هغه بې هوښه وو ... رسول الله د کور له خلقو پوښتنه وکوله ویل : وفات شوی دی؟ دوی ورته وویل : نه یا رسول الله رسول الله ورته په ژړا شو کله چې نورو د رسول الله ژړا ولیده دوی هم په ژړا شول ... بیا رسول الله وفرمایل : **ألا تسمعون إن الله لا يعذب بدمع العين ولا بحزن القلب ولكن يعذب بهذا وأشار إلى لسانه أو يرحم وإن الميت يعذب ببكاء أهله عليه .** [1]

ترجمه : تاسې دا نه آورئ بېشکه الله د سترګې په اوښکه او د زړه په خفګان عذاب نه ورکوي بېشکه عذاب ورکوي پدې سره (ژبې ته یې اشاره وکړه) او یا پرې رحم کوي (که د صبر او ښې خبرې یې وکولې) او بېشکه مړي ته د اهل د ژړا له امله تکلیف ورکول کیږي .

## رسول الله د خپل زوی په وفات ژړلي وو

کله چې د رسول الله زوی مبارک ابراهیم په حق رسېدلی وو د رسول الله له سترګو مبارکو نه اوښکې تللې وې حضرت انس بن مالک فرمایي : موږ له رسول الله سره ننوتلو پدې وخت کې ابراهیم په تکلیف کې وو د رسول الله له سترګو نه اوښکې تلل شروع شول پدې وخت کې عبد الرحمن بن عوف ورته وویل : **وأنت يا رسول الله** (ته هم ژاړې یا رسول الله) رسول الله ورته وویل : **يابن عوف، إنّها رحمة** (ابن عوف .. دا یو رحمت دی) بیا

---

[1] **صحيح البخاري**

رسول الله وفرمايل : **إنّ العين تدمع والقلب يحزن، ولا نقول إلاّ ما يرضي ربّنا، وإنّا بفراقك يا إبراهيم لمحزونون .** [1]

ترجمه : بېشکه سترګه اوښکه کوي زړه خفه کېږي خو موږ صرف هغه څه وايو چې په هغه باندې زموږ رب رضا کېږي او موږ ستا په جدايي باندې اى ابراهيمه خفه يو .

## رسول الله د خپل لمسي په وفات هم ژړلي وو .

د رسول الله لور احوال پسې ور ولېږلو چې زما زوى په تکليف کې دى زموږ کور ته راشئ رسول الله پاڅېدو حضرت سعد بن عبادة او څه نور کسان ورسره وو ماشوم يې چې را پورته کړو نفس يې تنګېدو د رسول الله له سترګو نه اوښکې راغلې حضرت سعد ورته ويل : يا رسول الله دا څه دي؟ رسول الله ورته ويل : **هذه رحمة جعلها الله في قلوب عباده، وإنّما يرحم الله من عباده الرحماء .** [2]

ترجمه : دا رحمت دى الله د بندګانو په زړونو کې ور اچولى دى او الله په هغه بندګانو باندې رحم کوي چې د هغوى په زړونو کې رحم وي .

---

1 صحيح مسلم
2 صحيح البخاري

## رسول الله د حمزه په شهادت ژړلي وو

کله چې رسول الله د اُحد د غزا نه وروسته څه د انصارو د ښځو اوازونه واورېدل چې هغوی په خپلو مړو باندې ژړل د رسول الله په سترګو کې اوښکې راغلې او ويې ويل : **لكن، حمزة لا بواكي له** (لکن په حضرت حمزه باندې ژړېدونکې نشته) .[1]

## په غزوة مؤتة کې په شهيدانو رسول الله وژړل

رسول الله غزوة مؤتة ته صحابه کرام لېږلي وو مخکې له دې چې هغوی راشي رسول الله د معجزې په ډول د هغوی قصه کوله د حديث الفاظ دي :

**أخذ الراية زيد، فأصيب. ثمّ أخذ جعفر، فأصيب. ثمّ أخذ ابن رواحة فأصيب"، وعيناه تذرفان...** [2]

ترجمه : رسول الله فرمايل : حضرت زيد بيرغ واخيست هغه په شهادت ورسېدو ، بيا بيرغ حضرت جعفر واخيست هغه هم په شهادت ورسېدو ، بيا حضرت ابن رواحه بيرغ واخيست هغه هم په شهادت ورسېدو (رسول الله چې دا خبرې کولې) له سترګو نه يې اوښکې تلې .

## رسول الله د جعفر په شهادت وژړل

1 صحيح البخاري
2 صحيح البخاري

کله چې د معجزې په ډول رسول الله ته خبر ورسېدو چې حضرت جعفر په غزوة مؤتة کې په شهادت ورسېدو نو رسول الله د هغه کور ته ورغلو د هغه ماشومان یې را ټول کړل او ځان ته یې را نېږدې کړل پدې وخت کې د رسول الله له مبارکو سترګو نه اوښکې لاړې د حضرت جعفر مېرمن حضرت اسماء ورته ویل : مور او پلار مې لتا زار شه د جعفر په اړه څه خبر تاته را رسېدلی دی ؟ رسول الله ورته وویل : هــــو! هغوی نن په شهادت ورسېدل ... دا مبارکه فرمایي زه په ژړا شوم د چم ګاونډ ښځې را ټولې شوې پدې وخت کې حضرت فاطمه بنت رسول الله راغله او ژړل یې ویل یې : ای زما تره .... رسول الله وویل : ژړېدونکې چې ژاړي نو د حضرت جعفر په ډول په انسان باندې باید وژاړي ..[1]

# په غم کې ځانونه وهل او جامې شکول نا روا دي

پدې ټولو پورتنیو روایاتو کې چې د رسول الله د ژړا په اړه راغلي دي نو دا یوازې د اوښکو تلل دي چې ورسره چیغې نشته ، نه ورسره بد الفاظ شته ، نه ورسره د جامو شکول ، مخ تورول او نور داسې کارونه شته نو شریعت ددې ممانعت نه کوي او هغه چې ممانعت یې کوي لکه مخکې په یو حدیث کې تېر شول هغه ژړا ده چې په لاس او یا ژبې سره څه ورسره وشي یعني بد الفاظ وویل شي او یا په لاسونو باندې مخ ووهل شي ، ګریوان څیرې کړل شي او یا نور دېته ورته کارونه وشي لکه وېښتان شکول ، ځان وهل او داسې نور .. او که انسان پدې کارونو کې څومره هم ځان ستړی کړي نه خو ژوندي ته ترې څه فایده شته او نه

---

[1] اسد الغابة

مړی ورسره بېرته را ژوندی کیږي بلکه ښه خبره داده چې موږ ته څنګه قرآن کریم را ښودلي دي الله فرمايي :

الَّذِينَ إِذَا أَصَابَتْهُم مُّصِيبَةٌ قَالُواْ إِنَّا لِلّهِ وَإِنَّا إِلَيْهِ رَاجِعونَ (156) أُولَئِكَ عَلَيْهِمْ صَلَوَاتٌ مِّن رَّبِّهِمْ وَرَحْمَةٌ وَأُولَئِكَ هُمُ الْمُهْتَدُونَ (157) .[1]

ترجمه : (او زیری ورکړه صبر کوونکو ته) (په جنت سره صبر کوونکي) هغه کسان دي کله چې ور ورسیږي دوی ته څه مصیبت نو وایي دوی بېشکه موږ (مملوک) د الله یو او بېشکه موږ هم ده (الله ته) بیا ورتلونکي یو (په آخرت کې) دغه کسان په هم دوی دی عنایتونه (بخښنې) له (طرفه د) رب د دوی او مهرباني ده او دغه کسان هم دوی دي سمه لاره موندونکي (حق ته) .

او صحابه کرامو به په داسې حالت کې ویل او ځانونو ته به یې ور یادول چې کله رسول الله وفات شو نو په دنیا کې خو د بل چا د همېشه پاتې کېدو څه سوال نه پیدا کیږي او د رسول الله د وفات نه وروسته هر غم وړوکی غم دی او پدې توګه به یې موجوده غم د خپل ځان لپاره سپکولو .

او ددې برسېره چې څوک د غم په وخت کې هغه کارونه کوي چې هغه اسلام منع کړي دي د هغوی په اړه حدیث دی حضرت عبد الله ابن مسعود فرمايي رسول الله فرمايي : لَيْسَ مِنَّا مَنْ ضَرَبَ الْخُدُودَ وَشَقَّ الْجُيُوبَ وَدَعَا بِدَعْوَى الْجَاهِلِيَّةِ .[2]

---

[1] سورة البقرة آية ١٥٦ او ١٥٧
[2] صحیح البخاري کتاب الجنائز

ترجمه : زموږ له ډلې څخه نه دي هغه کسان چې مخونه وهي ، تخرګونه شکوي او د جاهلیت په ډول دعا ګانې کوي .

حضرت ابو موسی الاشعري سخت بیمار وو سر یې د کورنۍ د کومې ښځې په غېږ کې وو پدې وخت کې یو ډول بې هوښه شوی وو چې د کور خلقو کوم وپر کولو ده ورته څه ځواب نشوای ورکولی چې کله یې سترګې را خلاصې کړې نو یې وویل :

**انا بَرِيءٌ مِمَّنْ بَرِئَ رَسُولُ اللهِ صلى الله عليه وسلم إِنَّ رَسُولَ اللهِ صلى الله عليه وسلم بَرِئَ مِنَ الصَّالِقَةِ وَالْحالِقَةِ وَالشَّاقَّةِ.**

ترجمه : زه له هغه څه نه بېزار یم چې له کوم شي نه رسول الله ﷺ بیزار وي او رسول الله ﷺ بیزار وو له هغه ښځې نه چې د غم په وخت کې چیغې وهي ، له هغه ښځې نه چې د غم ښکاره کولو لپاره سر خریي ، او له هغه ښځې نه چې د غم په وخت کې خپلې جامې شکوي .

دا پورتني دواړه حدیثونو مسلمانان لداسې کارونو څخه منع کوي چې هغه د کمال ایمان سره منافي دي هغه څوک چې په رښتیني ډول مؤمن وي د غم او خوشحالي حالتونه هغه کس دومره نشي بدلولی چې د شریعت خلاف کار وربانديې وکوي په پورتنیو دواړو حدیثنو کې د جاهلیت په څه کارونو بانديې انکار شوی دی او څرنګه چې په جاهلیت کې به خلقو د غم د ښکاره کولو لپاره همدا کارونه کول او اسلام خلق سمې لارې ته روان کړل او لدې کار نه یې منع کړل په لمړي حدیث کې د جاهلیت له دریو عادتونو څخه خلق منع کړل شوي دي:

۱. دا چې په مصیبت کې آخته کس به خپل ځان او خپل مخ نه وهي.

۲. مصيبت ځپلى كس به خپلې جامې نه شكوي يا داسې نور شى چې له ده سره وي هغه به نه ماتوي.

۳. مصيبت ځپلى به په مصيبت كې خپل اواز نه پورته كوي او د ځان او خلقو لپاره به د هلاكت دعا ګانې نه كوي او يا نورې داسې خبرې به په لوړ اواز نه كوي لكه د مړي نېک صفات ستايل او هغه ته خبرې كول چې تا موږ چاته پرېښودو ، تا خپل يتيمان چاته پرېښودل ...

همدارنګه په دوهم حديث كې هم له همدې دريو كارونو څخه منع شوېده لكن الفاظ بدل دي ... او شريعت لدې كارونو څخه ځكه منع كړېده چې ددېنه د الله په رضا باندې نا رضائيت ښكاره كيږي او مسلمان بنده بايد په هر حالت كې د الله په رضا باندې راضي وي او لكه په دوهم حديث كې دا صفات د زنانه لپاره ثابت شوي او بيا ورڅخه منع ددې امله شوې چې اكثر دا كارونه به زنانه وو كول او كوي يې په سړيو كې د مخ وهل ، د جامو شكول او نور دا كارونه دومره نه وي لكه په ښځو كې چې وي .

په بل حديث كې د حضرت ابي امامة نه روايت دى هغه فرمايي : أن رسول الله (ص) لعن الخامشة وجهها ، والشاقة جيبها ، والداعية بالويل والثبور .[1]

ترجمه : رسول الله لعنت ويلى دى په هغه ښځه باندې چې په غم كې خپل مخ زخمي كوي (خپل مخ وهي) او هغه چې خپلې جامې شكوي او هغه چې د غم په وخت كې ښيرا ګانې كوي .

[1] صحيح ابن ماجة

په بل حديث کې له حضرت ابي هريره نه روايت دی هغه فرمايي رسول الله فرمايل : **أَرْبَعٌ فِي أُمَّتِي مِنْ أَمْرِ الْجَاهِلِيَّةِ لَا يَتْرُكُونَهُنَّ: الْفَخْرُ فِي الْأَحْسَابِ، وَالطَّعْنُ فِي الْأَنْسَابِ، وَالْاسْتِسْقَاءُ بِالنُّجُومِ وَالنِّيَاحَةُ .** [1]

ترجمه : زما په امت کې څلور کارونه د جاهلت پاتې دي او دوی به يې پرې نه ږدي ، په خپلو مرتبو فخر کول ، په نسبونو باندې عيب ويل ، په ستورو باندې د باران غوښتل او په غم کې فرياد کول .

په همدې ډول زيات احاديث راغلي دي چې هغه تول په سختو تکو کې د غم او د چا د مړينې په حالت کې چيغې وهل او د جاهليت رواجونه کول غندي او رد کوي ...

[1] **سنن الترمذي**

## ښيرا نه کول

پدې وخت کې که انسان دعاء کوي او که ښېرا کوي د قبلېدو وخت دی هسې نه چې انسان پدې وخت کې ځان ته څه ښيرا وکوي هغه قبوله شي ددې وخت په اړه يو حديث دی :

**دخل رسول الله صلى الله عليه وسلم على أبي سلمة وقد شقّ بصره فأغمضه ، ثم قال : إن الروح إذا قبض تَبِعَه البَصَر ، فضجّ ناس من أهله ، فقال : لا تدعوا على أنفسكم إلا بخير ، فإن الملائكة يُؤمّنون على ما تقولون ، ثم قال : اللهم اغفر لأبي سلمة وارفع درجته في المهديين ، واخلفه في عقبة في الغابرين ، واغفر لنا وله يا رب العالمين ، وأفسح له في قبره ، ونوّر له فيه[1].**

ترجمه : رسول الله ﷺ هغه ځای ته ور ننوت چېرته چې د ابي سلمه ؓ جسد پروت وو سترګې يې خلاصې وې رسول الله ﷺ ور پټې کړې او بيا يې وفرمايل کله چې روح له بدن څخه وزي سترګې ورپسې اوړي بيا د هغه د اهل ځينو خلقو فرياد وکولو رسول الله ﷺ وفرمايل: ځان ته ښېراګانې مه کوئ ځکه ملائک په هغه څه باندې آمين وايي چې تاسې يې واياست بيا يې وفرمايل : ای الله ابي سلمة ته بښنه وکوه او د هغه درجه په هغه کسانو کې لوړه کړې چې هدايت ورته شوی وي او په پاتې کسانو کې يې ته خليفه شه ، موږ ته او هغه ته بښنه وکوه او جنت ورته فراخه کړه او ورته رڼا يې کړه .

## که چاته ژړا نه ورځي

[1] صحيح مسلم

هغه کس چې د چا مړي ته حاضر شي که ژړا نه ورځي نو په زور به ځان نه ژړوي او نه به ددې کوښښ کوي چې ده ته ژړا ورشي او څوک يې ووينې چې دی ژاړي او همدارنګه څوک به هلته ددې کوښښ هم نه کوي چې چا ته ژړا وروليي کله د مړي په خوا کې داسې ښځې ناستې وي چې هغه داسې خبرې کوي چې له بهر نه راغليو ښځو ته ژړا ورشي دا ټول ناروا دي صرف د هغه کسانو په اوښکو (بغير د اواز) نه ژړا روا ده چې هغوی د زړه له درده ژاړي .

## د خلقو په ژړا سره مړي ته عذاب ورکول کيږي؟

پدې اړه يو حديث دی حضرت عبد الله بن عمر فرمايي : حضرت سعد بن عبادة له هغه بيماري نه په تکليف کې وو چې په ده باندې لګېدلې وه رسول الله ورته راغلو چې پوښتنه يې وکوي پدې وخت کې حضرت عبد الرحمن بن عوف ، سعد بن ابي وقاص ، عبد الله بن مسعود هم ورسره وو کله چې ورته را ننوتل هغه په بې هوښي کې وو رسول الله يې د کور خلقو ته وويل : وفات شوی دی؟ دوی ورته وويل : نــــــــه يا رسول الله ... پدې وخت کې رسول الله په ژړا شو (اوښکې يې تللې او اواز يې نه وو) کله چې صحابه وو د رسول الله ژړا وليده نو دوی هم په ژړا شول بيا رسول الله وفرمايل : **أَلاَ تَسْمَعُونَ إِنَّ اللَّهَ لاَ يُعَذِّبُ بِدَمْعِ الْعَيْنِ، وَلاَ بِحُزْنِ الْقَلْبِ، وَلَكِنْ يُعَذِّبُ بِهَذَا - وَأَشَارَ إِلَى لِسَانِهِ - أَوْ يَرْحَمُ وَإِنَّ الْمَيِّتَ يُعَذَّبُ بِبُكَاءِ أَهْلِهِ عَلَيْهِ .** [1]

[1] **صحيح البخاري**

ترجمه : تاسې آورئ نه الله د سترګې په اوښکه عذاب نه ورکوي او نه د زړه په خفګان سره عذاب ورکوي بلکه عذاب په دې سره ورکوي ژبې ته يې اشاره وکړه او يا وربانديې رحم کوي (که په ژبه څه بدې خبرې او شکايت وشي عذاب پرې ورکوي او که په ژبه بانديې د الله حمد او ثناء وويله شي نو وربانديې رحم کوي) بېشکه مړي ته د هغه د اهل د ژړا له امله عذاب ورکول کيږي .

په پورتني حديث کې رسول الله وفرمايل چې مړي ته د هغه د اهل په ژړا سره عذاب ورکول کيږي اوس پدې کې اشکال دا دی چې مړی خو پروت دی او روح ترينه وتلی دی اوس چې دده اهل ژاړي پدې کې د مړي څه ګناه ده چې هغه ته پرې عذاب ورکول کيږي؟ سره ددې چې الله فرمايي : **وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِزْرَ أُخْرَىٰ** (يعني هېڅ يو بارونکی د بل چا ګناه نه باروي) يعني هېڅ کس د بل چا د ګناه عذاب نه ګالي هر چا ته به د خپلې ګناه عذاب رسيږي ..

علماوو ددې اشکال نه په ځواب کې ډېر ځوابونه ويلي دي خو ډېر خوندور ځوابونه يې دوه دي ..

١. دا د هغه چا په حق کې دی چې هغه وصيت کړی وي پدې سره .. اکثر خلق پدې وصيت کوي چې په ده پسې به ښه په خوند ژاړئ چې خلق دده په قدر پوه شي او اکثر خلق ددې وصيت کوي چې کله دی مړ شي نو داسې ښځې به راولئ چې هغه وژاړي نو دا کس به دده د شا ته پاتې خلقو په ژړا سره په عذاب کيږي او هغوی چې څومره ژاړي ګناه به يې ده ته ور رسيږي او همدارنګه هغه کسانو ته به هم رسيږي چې هغوی پدې پوه وي چې خلق به په ما پسې ژاړي او ده ددې موقع پيدا کړه چې هغوی ته وصيت وکوي او منع يې کړي لکن ده منع نه کړل نو په ده پسې چې خلق څومره ژاړي په ده

پسې به د هغوی ګناه رسيږي ددې امله خو حضرت عبد الله ابن مبارک فرمايي : **إذا كان ينهاهم في حياته ففعلوا شيئاً من ذلك بعد وفاته، لم يكن عليه شيءٌ** (هغه چې ده په ژوند کې منع کول (په ژوند کې ده خلقو ته وويل چې که زه مړ شم په ما پسې به څوک نه ژاړي) او بيا هم هغوی وژاړي دده له مرګ نه وروسته نو په ده باندې هيڅ ګناه نشته) دا رايه د جمهورو علماوو ده .

۲. دوهم قول دا دی چې په حديث کې د يعذب لفظ د عقاب په معنی نه دی بلکه د درد او تکليف په معنی دی نو د حديث معنی داده چې کله د مړي په خوا کې څوک ژاړي نو هغه ته ددې ژړا نه تکليف رسيږي او هغه ته پرې درد رسيږي د هغه نه خوښيږي چې څوک دده په خوا کې وژاړي دا رايه د حضرت شيخ التفسير امام الطبري او شيخ ابن قيم جوزي ده دوی وايي چې په حديث کې لفظ د عذاب راغلی دی مراد ترينه درد او تکليف دی لکه په يو بل حديث کې هم چې لفظ د عذاب ذکر شوی دی او مراد ترينه تکليف وي رسول الله فرمايي : **اَلْسَّفَرُ قِطْعَةٌ مِنْ الْعَذَابِ** (سفر د تکليف ټوټه ده) .

# د صحابه وو صبر

هغه کسان چې د رسول ﷺ په خوا کې وو (صحابه کرام ) هغوی د رسول ﷺ په تعلیم ښه پوره پوه شوي وو او د اسلام ټول تعلیمات یې په خپل ژوند کې عملي کړي وو او خپل ژوند یې وربانديې ښائسته کړی و او هغوی داسې خلق وو چې په زړه ، ځان او مال سره یې اسلام قبول کړی وو او په خپل ژوند کې یې دا ښکاره کړې وه چې د هغوی مرګ او ژوند په اسلام کې وو هغوی په هر ډول حلاتو کې صبر کاوه او د هغوی د هر یو صبر د ټول امت لپاره یوه نمونه وه د مثال په ډول درته د هغوی د صبر څو واقعې ایږدم ..

## د حضرت ام سُلیم صبر

دا مبارکه د حضرت ابو طلحة مېرمن وه ددې یو زوی پداسې وخت کې په حق رسېدلی وو چې ددې خاوند په کور کې نه وو حضرت انس ابن مالک ددې مبارکې قصه داسې کوي :

د حضرت ابي طلحة زوی بیمار وو پدې وخت کې ابو طلحة له کور نه بهر وو هغه وفات شو مور مبارکې (حضرت ام سُلیم ) چې کله ولیدل چې ماشوم وفات شو هغه یې تیار کړو او د کور په یو طرف کې یې کېښود کله چې حضرت ابو طلحة کور ته راغلو پوښتنه یې وکوله ماشوم څنګه دی؟ دې مبارکې ورته وویل : هغه اوس په ارام شوی دی او ما هم پرېښود چې ارام وکوي ام سلیم د کور خلقو ته وویل : تاسې به ده ته د زوی د وفات په اړه څه نه وایاست زه ورته وایم کله چې هغه کور ته راغلو ډوډۍ یې ورته کېښوده هغه خوراک وکولو او څښاک یې وکولو او بیا یې په ښه طریقه لکه د مخکې په شان داسې ځان جوړ کړو

حضرت ابوطلحة هغې ته نېږدې شو چې کله ښه په ارام شو بیا یې ورته وویل : ابا طلحة که چېرته څوک چا ته امانت ورکړي او بیا یو څه وخت وروسته ورنه وغواړي چې د هغه امانت د بېرته ورکړل شي نو هغه څوک چې دا امانت ورسره ایښی دی هغوی به ددې له ورکړې انکار کوي؟
حضرت ابو طلحة ورته وویل : نـــــــه بیا یې ورته وویل : ښه نو بیا په خپل زوی باندې صبر وکوه (هغه وفات شوی دی او هغه الله موږ ته راکړی وو او بېرته یې راڅخه واخیست) دی ورته غصه شو ورته یې وویل : تا زه پرېښودم چې ما ځان ګنده کړو( تاته نېږدې شوم او غسل ته مې ضرورت شو)؟ بیا د راته وویل؟ له همدې ځای نه حضرت ابو طلحة روان شو او رسول الله ته راغلو ټوله قصه یې ورته وکوله بیا رسول الله ورته وویل : **بارك الله لكما في غابر ليلتكما** (الله د دشپې په تېره برخه کې تاسې ته برکت واچوي) بیا د همدې دعاء او صبر برکت وو چې له همدې شپې نه الله ورته د عبد الله په نوم ښکلی ماشوم ورکړو .

## حضرت ام خلاد

د بني دینار قبیلې یوه ښځه وه د حضرت عمرو بن الجموح مېرمن وه په غزوة اُحد کې یې ورو، خاوند او زوی په شهادت رسېدلي وو چا چې ورته د هغوی د شهادت خبر ورکړو دې مبارکې مخکې لدې چې په هغوی باندې ویر او ژړا وکوي پوښتنه یې وکوله : رسول الله څنګه دی؟

خلقو ورته ورته وویل : ام جلاد هغه بالکل ښه دی ... دې مبارکې وویل : ماته یې راښکاره کړئ چېرې دی ؟ چا ورته وښود چې هغه د صحابه وو کرامو په ډله کې وو چې ویې لیدو نو یې وویل

: مور پلار مې لتا زار شه ستا نه وروسته هر غم وړوکی دی .

# د حضرت ابو بکر صديق صبر

حضرت ابو بکر صديق هغه کس وو چې په ټوله دنيا کې رسول الله ته ډېر ګران وو او رسول الله هم ډېر زيات ورته ګران وو کله چې رسول الله وفات شو هغه له مدينې منورې نه لرې بهر وو دا داسې وخت وو چې د ځينې لويو لويو صحابه وو دماغو کار نه کولو او د غم له امله يې حال بدل وو د اکثرو خلقو ژړا نه درېده ځکه رسول الله د ټولو صحابه وو لپاره يو مهربان پلار، يو خوږ دوست ، يو نېږدې خپلوان، يو پوه استاد، يو تکړه قوماندان او يوه داسې هستي وه چې هر انسان ورته ضرورت درلود او هيچا يې هم جدايي نشوای برداشت کولی حضرت عمر له دومره لوړ شان سره توره را ويستلې وه او ويل يې منافقينو اوازه خپره کړېده چې محمد وفات شوی دی که له چا نه مې دا خبره واورېده وژنم يې ... لکن حضرت ابوبکر صديق چې کله راغلو حضرت عائشه فرمايي : اول جومات ته لاړو په جومات کې زيات خلق وو له هېچا سره يې هم خبرې ونه کولې بيا زما کوټې ته راغلو چېرته چې رسول الله ايښی وو سيده ورغلو د هغه مخ پټ وو مخ يې وربانديې لوڅ کړو او د سترګو په مينځ کې يې ښکل کړو او ويې ويل : **طبت حياً و ميتاً** (په ژوند او مرګ دواړو حالتونو کې ښکلی يې) او بيا د پوره صبر او استقامت سره جومات ته را ووتلو خلقو ته يې خبرې شروع کړې او هغوی ته يې وويل : هغه چا چې د محمد عبادت کاوه هغه د خبر شي چې محمد وفات شو ... او هغه څوک چې

د یو الله عبادت کوي هغه همېشه ژوندی دی نه مړ کیږي او بیا یې دا آیت تلاوت کړو :

وَمَا مُحَمَّدٌ إِلَّا رَسُولٌ قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِهِ الرُّسُلُ ۚ أَفَإِنْ مَاتَ أَوْ قُتِلَ انْقَلَبْتُمْ عَلَىٰ أَعْقَابِكُمْ ۚ وَمَنْ يَنْقَلِبْ عَلَىٰ عَقِبَيْهِ فَلَنْ يَضُرَّ اللَّهَ شَيْئًا ۗ وَسَيَجْزِي اللَّهُ الشَّاكِرِينَ . [1]

ترجمه : او نه دی محمد مګر (دی) یو رسول (د الله ) په تحقیق تېر شوي دي له ده نه پخوا (ډېر) رسولان آیا نو که مړ شي (محمد) یا شهید کړل شي (محمد) نو بېرته به وګرځئ تاسې پر پوندو خپلو (کفر ته) او هر څوک چې بېرته وګرځېد په پوندو خپلو (کفر ته) نو له سره به زیان ونه رسوي الله ته هېڅ شی او ژر به جزا ورکړي الله شکر ګزارو ته (د اسلام په نعمت) .

کله چې صحابه کرامو د حضرت ابي بکر صدیق له خولې نه دا آیت واورېدو داسې ورته ښکاره شوه لکه دا چې مخکې دوی بالکل آورېدلی نه وي او د هغې نه وروسته به د هرکس په خوله باندې همدا آیت وو او تلاوت کاوه به یې ..

[1] سورة آل عمران

# حضرت عروة بن الزبير

دا مبارک تابعي دی لوی عالم او تقوی دار انسان وو د حضرت ابي بکر صديق د لور له طرفه لمسی دی او د حضرت اسماء زوی دی پلار يې حضرت زبير ابن العوام دی چې ورته د رسول الله حواري ويل کيږي او حضرت ام المؤمنين عائشه يې ترور ده د خليفة وليد بن عبد الملک په وخت کې هغه په دمشق کې د اموي خلافت ځای ته د ملاقات لپاره ور وغوښت حضرت عروة د مدينې منورې نه سفر ته ځان تيار کړو او د الله نه يې د سفر لپاره مرسته وغوښته او يو زوی يې له ځان سره ملګری کړو او دا ورته په ټولو ۷ اولادونو کې ګران وو او د شام په لوري روان شول په لاره کې يې په پښه کې څه بيماري را پيدا شوه او ورو ورو په سختېدو شوه تردې چې په پښو باندې يې نور د تللو وس نه وو او دمشق ته په داسې حالت کې ننوتل چې دی بل چا اخيستی وو ...

خليفه چې وليدل چې دده يو ګران مېلمه پداسې توګه باندې دمشق ته ننوزي نو ډېر زيات خفه شو او په ډېره عاجله توګه يې ماهرين اطباء او د وخت حکيمان ورته را ټول کړل چې څومره زر کېدلی شي دده علاج د وکړي طبيبانو ټولو فيصله وکوله چې دده په پښه کې داسې بيماري ده چې د پرې کولو نه بغير يې علاج نه کيږي او دا به په ګونډه کې پرې کول کيږي خليفه ويل : دا څنګه ممکنه ده چې يو مېلمه د زما کور ته راشي او بيا د پداسې حالت کې بېرته ځي چې پښه يې پرې وي؟ طبيبانو ورته وويل : که موږ اوس دده پښه په ګونډه کې پرې کړو دا دده لپاره ښه ده او کنه نو بيا به دا بيماري زنګون ته ورشي او بيا به يې هېڅ حل نه وي ....

ده مبارک به صرف ویل : یا الله تا لره حمد او ثناء ده ..

طبیبانو دده د پښې په پرې کولو بانديې آخري فیصله وکوله او شروع یې وربانديې وکوله پدې وخت کې دی بې هوښه وو چې د قصر نه له بهر نه چا را منډه کړه او خبر یې راووړو چې د همدې مېلمه (حضرت عروة ) زوی بهر د خلیفه له آسونو سره لوبې کولې یو آس وغورځولو او په حق ورسېدو ...

خلیفه چې دا خبره واورېده ډېر سخت خفه شو چې دده له مېلمه سره ولې داسې حادثې کیږي او پدې فکر کې شو چې له یوه پلوه د مېلمه پښه پرې شوه او ددېنه وروسته به دا خبره ده ته څنګه کوي چې دده زوی په حق ورسېدو او خلیفه هم پدې خبره پوه وو چې په ټولو زامنو کې دا ورته ډېر ګران وو ... کله چې را په هوښ کې شو خلیفه ورته په خوا کې ناست وو ورته یې وویل : الله د ستا د پښې اجر درکړي ده مبارک وویل : حمد ثناء ده الله لره او **انا لله و انا الیه راجعون** ... خلیفه ورته په ډېر وهم او ډار او ښکته اواز کې ویل : الله د ستا د زوی په هکله هم تاته اجر درکړي هغه په حق رسېدلی دی ... ده مبارک وویل : حمد ثناء ده الله لره **انا لله و انا الیه راجعون** هېڅ خبره نه ده الله راته اوه زامن راکړي وو نو که یې یو بېرته واخیستو نو څه او الله راته څلور لوی اندامونه راکړي وو که یو یې بېرته واخیستو نو څه ..؟ الله دې ما لدې دواړو سره په جنت کې یو ځای کړي .. بیا یې دده پښه ورته په یو طشت کې راوړه چې له ده څخه یې پرې کړې وه ده مبارک ورته وکتل او ویې فرمایل : الله پدې ښه عالم دی چې زه پدې پښه کله هم د ګناه

ځای ته نه وم تللی ... او پوره صبر یې وکولو ...

حضرت عروة ورو ورو د همسا له استعمال سره عادي کېدو او کله کله به په همدې حالت کې د خلیفه مجلس ته راتلو او دلته به یې د مختلفو خلقو خبرې آوریدې چې د خلیفه مجلس ته به راتلل او د هغوی احوال به یې لیدل..

یوه ورځ چې مجلس ته راغلو یو سپین ږیری سړی ناست وو په یوه سترګه ړوند وو همسا یې په لاس کې وه خلیفه حضرت عروة ته وویل : دده نه پوښتنه وکوه چې دده دا حال ولې دی او دده قصه څه ده؟

ده مبارک هغه ته وویل : شیخ ستاسې قصه څه ده؟

هغه ورته وویل : زه په یو ځای کې اوسېدم چې په هغه ځای کې زما نه ډېر مالدار او د ښه ژوند مالک بل هېڅوک هم نه وو .. د شپې موږ ویده وو نا څاپي را باندې سیل راغلو څه مال او دولت او شته مې چې لرل تر اولادونو او هرشي پورې هغه ټول یې راخڅه یوړل ماته په غېږه کې یو وړوکی ماشوم او یو اوښ چې لږ په لوړ ځای کې وو او له ابو نه خلاص شوی وو پاتې شول ..

دا شپه تېره شوه چې سحر شو نو هېڅ شی مې نه درلودل حیران ناست وو هغه اوښ هم راڅخه و تښتېدو .. ما په هغه پسې منډه کړه چې را ویې نیسم ... له شا نه مې د ماشوم د ژړا اواز واورېدو .. چې شا ته مې وکتل چې بچی مې د لېوه په خوله کې وو او هغه ورسره منډې وهلې ما پسې منډه کړه خو په لیوه پسې ور ونه رسېدم او ما ولیدل چې لیوه زما زوی مات کړو او هغه یې مړ کړو کوشش مې وکړو ترې را خلاص مې نه شو کړلی ....

بېرته راغلم په اوښ پسې مې منډه کړه چې په اوښ پسې ور نږدې شوم هغه په یوه نا څاپي لغته په مخ باندې ووهلم او سترګه مې راووتله .. ځای په ځای کېناستم او اوښ رانه ورک شو ...

حضرت عروة چې د سپین ږیري قصه آورېده خپله قصه یې بالکل وربانديې هېره شوه او په حیرانتیا کې یې ورته کتل بیا یې ورته وویل : ددې هرڅه نه وروسته ته څه وایې؟

سپین ږیري ورته ویل : زه ددې ټولو نه وروسته دا وایم چې حمد ثناء ده الله لره هغه یو زړه راکړی دی چې هروخت الله یادوي او یوه ژبه یې راکړې ده چې هر وخت وربانديې د الله ذکر جاري وي .

## د جنازې خبرتیا

په کومه ذریعه چې کېدلی شي (چې ناروا عمل پکې نه وي) باید تر دوستانو او د مرحوم تر ملګرو پورې ددې خبر ورسیږي چې هغه وفات شوی دی ترڅو خلق دده هغه حق چې په دوی باندې دی (په جنازه کې شرکت) پوره کړي او ده ته دعا ګانې وکوي او دده په تجهیز او تکفین کې د مرستې لپاره راشي .[1]

## د جنازې مونځ

د جنازې مونځ فرض عین دی که یو څه کسان یې وکوي د ټولو خلقو غاړه پرې خلاصیږي او که هېڅوک یې ونه کوي نو ټول خلق ګنهګار کیږي.

[1] شامي او عالمګیري

د مانځه لپاره د مړي اسلام او د هغه پاکي شرط ده ترڅو چې سخت ضرورت او عذر نه وي نو د غسل نه بغير به مونځ وربانديې نه کوي.

که اول وربانديې مونځ وشو او بيا غسل ورکړل شو مونځ به بېرته را ګرځوي .

هغه څوک چې مسلمان پيدا شوی وي که لوی وي که وړوکی که نارينه وي او که ښځينه که اصيل وي او که غلام مونځ به وربانديې کيږي صرف هغه کسان چې باغيان وي او يا قطاع الطريق (غلا کونکي) وي هغوی چې ووژل شي او يا مړه شي په هغوی بانديې به مونځ نه کيږي.

هغه څوک چې ځان پخپله قصداً ووژني هم مونځ به وربانديې کېږي.

که موجود وي نو د جنازې د مانځه د امامت لپاره تر ټولو نه بادشاه غوره دی بيا قاضي بيا امام او که دا هېڅوک موجود نه وو بيا يې نېږدې خپلوان او په خپلوانو کې چې ډېر ورته نېږدې وي اول د هغه حق دی چې دده د جنازې امامت وکوي او که پلار او زوی يې دواړه موجود وو نو پلار به يې امامت کوي.

مړی به په زمکه بانديې کېښودل شوی وي د خلقو په لاسونو کې يا په کوم شي بانديې به بار کړل شوی نه وي.

امام به د مړي د سينې په برابر دريږي دا سنت دي .

د اول تکبير نه وروسته ثناء ويل هم سنت دي

د جنازې په مانځه کې درود ويل هم سنت دي .

د جنازې په مانځه کې مړي ته دعا کول هم سنت دي.

د جنازې مونځ څلور تکبيره دی که يو تکبير هم پاتې کړل شي نو د جنازې مونځ نه کيږي .

## د جنازې مونځ عبادت دی

څرنګه چې د جنازې مونځ عبادت دی چې د الله لپاره کول کيږي نو پدې کې به د عبادت په نيت شرکت کيږي او بل د مرحوم حق دی هغه ور پوره کول کيږي نو کله چې څوک جنازې ته روان وي نو دا فکر به يې نه وي چې جنازې ته ورځم ترڅو د کور واله خلق راڅخه خفه نه شي که څوک جنازې ته پدې نيت ځي چې د مرحوم د کور خلق ورڅخه خفه نه شي نو هغه وخت چې دی يې مصرف کوي او يا هغه پيسې چې دی يې په کرايه کې لګوي دا ټول ضائع کيږي او دا هرشی عبث دي او له بله پلوه د جنازې مونځ فرض عين نه دی چې د هر چا حاضريدل پکې ضروري دي او په هر چا پانې لازم دي چې خامخا به پکې شرکت کوي او که چا پکې شرکت ونه کولو هغه به ګنهکار او مجرم وي بلکه دا فرض کفايي دی چې ځينې خلق يې وکوي د نورو خلقو غاړه وربانديې خلاصه ده او دا غلط رواج دی که څوک د چا د کوم خپلوان يا عزيز جنازې ته ورنشي نو خلق ترينه خفه کيږي د چا نه د خفګان ضرورت پکې نشته له چا څخه چې د جنازې مونځ تېر شي نو د الله يو عبادت ورڅخه پاتې شو چې ده پکې شرکت ونه کولو د مړي د کور خلق بايد ورڅخه خفه نه شي .

## د جنازې د مانځه ثواب

د جنازې مونځ له يوه پلوه د يو مسلمان په بل بانديې يو حق دی چې پوره کول غواړي او له بله

پلوه د زيات ثواب سبب كيږي پدې اړه متعدد احاديث راغلي دي په يو حديث كې د حضرت ابي هريره نه روايت دى هغه فرمايي : رسول ﷲ فرمايل : مَنْ شَهِدَ الجنَازَةَ حَتَّى يُصَلِّي عَلَيها فَلَهُ قِيرَاطٌ ، وَمَنْ شَهدَهَا حَتَّى تُدْفَنَ فَلَهُ قِيراطَانِ » قيلَ وما القيراطَانِ ؟ قال : « مِثْلُ الجَبلَيْنِ العَظِيمَيْنِ » [1]

ترجمه : څوك چې جنازې ته حاضر شي ترڅو د جنازې مونځ وكوي نو دده لپاره يو قيراط ثواب دى او څوك چې تر هغه وخته ورسره حصار شي چې هغه خښ كړل شي د هغه لپاره د دوو قيراطونو ثواب دى چا ورڅخه پوښتنه وكوله : دا دوه قيراطونه څه شى دي؟ رسول ﷲ وويل : لكه دوه لوى غرونه .

همدې ته ورته بل حديث دى حضرت ابو هريره فرمايي رسول ﷲ فرمايل : من اتَّبعَ جَنَازَةَ مُسْلِمٍ إيمَاناً واحْتِسَاباً ، وَكَانَ مَعَهُ حَتَّى يُصَلِّي عَلَيها ويَفْرُغَ من دَفنِها ، فَإِنَّهُ يَرْجعُ مِنَ الأَجرِ بقِيراطَين كُلُّ قيرَاط مِثلُ اُحد ، ومَنْ صَلَّى عَلَيهَا ، ثم رَجَعَ قبل أَن تُدْفَنَ ، فَإِنَّهُ يرجعُ بقِيرَاط » . [2]

ترجمه : چا چې له ايمان او اخلاص سره د يو مسلمان په جنازه كې شركت وكولو او د هغه سره دومره حصار شو چې د هغه له جنازې او له دفن څخه خلق فارغ شول نو ده ته به د دوو قيراطونو په اندازه ثواب وركول كيږي او هر قيراط به لكه اُحد دومره وي او چا چې وربانديې مونځ وكولو او له دفن كېدلو وړانديې را وګرځېدو هغه ته به د يو قيراط په اندازه ثواب وركول كيږي .

[1] متفقٌ عليه
[2] رواه البخاري

ددې حديث په اړه يوه واقعه ده چې حضرت عبد الله بن عمر له يو څه صحابه وو سره ناست وو پدې وخت کې حضرت خباب راغلو حضرت عبد الله بن عمر ته يې وويل : اې عبد الله تا دا آورېدلي دي چې حضرت ابو هريره وايي رسول الله فرمايلي دي چې څوک د چا جنازې ته ورشي هغه ته د قيراط ثواب رسيږي او قيراط لکه د اُحد غر دومره دی ؟ حضرت عبد الله بن عمر دومره لوی ثواب ته حيران شو نو يې زر حضرت خباب ته وويل : ته ورشه ددې حديث په اړه له حضرت عائشې نه پوښتنه وکوه او زر بېرته راشه .. کله يې چې هغه حضرت عائشې ته ور ولېږلو حضرت عبد الله بن عمر ناست وو د جومات له زمکې نه يې څه شګې را واخيستلې او په لاس کې يې سره اړولې او را اړولې انتظار يې ويستلو تردې چې هغه کس بېرته راغلو ورته يې وويل : حضرت عائشه فرمايي : هـــــــــو! حضرت ابو هريره رښتيا وايي رسول الله همداسې ويل ... حضرت عبد الله بن عمر هغه شګې په زمکه وويشتلې او ويې فرمايل : دا خو موږ دومره وخت ډېر زيات قيراطونه (ډېر زيات ثوابونه) له لاسه ورکړي دي .... او په تېر وخت باندې سخت خفه شو ...

## په جنازه کې ډېر خلق غوره دي

په کومه جنازه کې چې ډېر خلق شرکت وکوي دا د مرحوم لپاره غوره خبره ده او د هغه لپاره د ډېر اجر سبب کيږي او دا په جنازه کې شريک خلق چې د مړي لپاره مخلصين وي او د هغه لپاره د زړه نه دعاء کوي نو دا نوره هم غوره خبره ده دا دعاء د هغه په حق کې قبول ته ډېره نېږدې ده پدې اړه حضرت عبد الله بن عباس فرمايي :

**سمعت رسول الله صلى الله عليه وسلم يقول :ما من رجل مسلم**

يموت، فيقوم على جنازته أربعون رجلاً لا يشركون بالله شيئاً إلا شفعهم الله فيه.[1]

ترجمه : ما له رسول الله ﷺ نه آورېدلي دي چې هغه فرمايل : كوم مسلمان چې وفات كيږي او د هغه په جنازه كې څلوېښت داسې كسان شركت وكوي چې هغوى سوچه مسلمانان وي او هغوى شرك نه كوي نو الله ﷻ به د مړي په حق كې ددې كسانو شفاعت قبول كړي يعني كه دوى په اخلاص سره د مړي په حق كې دعاء وكوي نو الله ﷻ به د دوى دعاء قبوله كړي .

بل حديث حضرت عائشې ؓ نقل كړى دى هغه فرمايي : ما من ميت يصلي عليه أمة من المسلمين يبلغون مائة كلهم يشفعون له إلا شفعوا فيه.[2]

ترجمة : كوم مړى چې په هغه باندې د مسلمانانو ډله چې شمېره يې سلو ته رسيږي مونځ وكوي دوى ددې مړي په حق كې سفارش وكوي الله ﷻ د دوى سفارش قبلوي (يعني دوى د هغه په حق كې د اخلاص دعاء وكوي الله ﷻ د دوى دعاء د هغه په حق كې قبلوي) .

پدې اړه په تحفة الاحوذي كې ليكلي دي :

وفي هذه الأحاديث استحباب تكثير جماعة الجنازة، ويطلب بلوغهم إلى هذا العدد الذي يكون من موجبات الفوز، وقد قيد ذلك بأمرين :
الأول: أن يكونوا شافعين فيه أي مخلصين له الدعاء سائلين له المغفرة.
الثاني: أن يكونوا مسلمين ليس فيهم من يشرك بالله شيئاً .

---

[1] صحيح مسلم
[2] صحيح مسلم

ترجمه : او پدې احاديثو کې د جنازې د جمع د زياتوالي مستحب والی دی او چې کله د کومې جنازې شمېر دې پورته ياد کړل شويو شمېرو ته ورسيږي نو دا د کاميابي له اسبابو څخه وي لکن پدې کې دوه قيدونه ياد کړل شوي دي :

اول دا چې دوی به په اخلاص سره د مړي لپاره دعاء کوي .

دوهم دا چې دوی به مسلمانان وي داسې کسان به پکې نه وي چې هغوی شرک کوي .

نو لنډه دا چې د کوم مسلمان په جنازه کې څلوېښت او د يو حديث له مخې سل داسې کسان را ټول شي چې په خپل ځان کې ښه مسلمانان او د مړي لپاره مخلصين وي او د هغه لپاره په اخلاص سره دعاء کوي نو الله د دوی دعا ګانې د هغه لپاره قبلوي.

# د نوي پيدا شوي ماشوم جنازه

چې نوی پيدا شي د هغه ماشوم دری حالتونه وي ..

لمړی حالت : ژوندی پيدا شي بيا مړ شي

يعني ماشوم پيدا شي د ژوند نښې وربانديې ښکاره شي د مثال په ډول وژاړي ، اواز وباسي ، حرکت وکوي او د هغې نه وروسته بيا مړ شي نو بالاجماع به پدې ماشوم باندې مونځ کيږي ځکه په هر مسلمان مړي باندې مونځ کيږي يعني هغه چې ژوندی وي بيا مړ شي نو هغه ژوند که لږ وي او که ډير وي يوه خبره ده پدې اړه د حضرت جابر حديث دی هغه فرمايي رسول الله فرمايل : **الطفل لا يُصلى عليه، ولا يرث، ولا يورث، حتى يستهل.** [1]

ترجمه : په ماشوم باندې مونځ نه کيږي نه ميراث وړي او نه له ده څخه ميراث وړل کيږي ترڅو د پيدا کېدلو نه وروسته اواز ونه باسي .

يعني چې اواز ونه باسي نو بيا وربانديې نه کيږي او کله چې اواز وباسي بيا وربانديې کېدلی شي .

دوهم حالت : تر څلورو مياشتو کم وي

کله چې ماشوم پداسې وخت کې ضائع شي چې د حمل موده يې تر څلورو مياشتو نه کم وي يعني مخکې لدې چې په هغه کې روح واچول شي نو امام نووي فرمايي چې پدې کې هم اجماع ده چې مونځ وربانديې نه کيږي

[1] أخرجه الترمذي

دريم حالت : له څلورو میاشتو وروسته لکن مړ پیدا شي

یعني د حمل له وخت نه یې تر څلورو میاشتې زیاتې کیږي لکن چې کله پیدا شي د ژوند هیڅ ډول نښه وربانديښکاره نه شي نه څه اواز وکوي او نه څه حرکت او نه بل داسې څه وي چې د هغه نه ښکاره شي چې دی پیدا شو نو ژوندی وو پدې کې دوه رایې دي :

لمړۍ رایه داده چې پدې باندې به مونځ نه کیږي دا رایه د جمهورو حنفیانو ، مالکیانو او شافعیانو ده .

دوهمه رایه داده چې په ده باندې مونځ کېدلی شي د امام شافعي یوه رایه ده او د امام حمد هم همدا رایه ده . .

## د جنازې د مانځه نه وړاندې تقریر

کله چې جنازه تیاره شي او خلق مانځه ته را ټول شي نو د هغه نه وروسته په ځینې ځایونو کې رواج دی چې مشران علماء او مشهور شخصیتونه تقریرونه کوي ددې تقریر ځای دا بالکل نه دی او پدې وخت کې که چېرته ډېر ضرورت وي ځینې خلقو ته د جنازې د مانځه په کولو کې مسئلې وي که یو څوک پاڅیږي په ساده ژبه او په لنډو الفاظو کې خلقو ته جنازه ور وښیي نو صحیح خبره ده او یا یو څوک پاڅیږي له خلقو نه د مړي د حق په اړه پوښتنه وکوي چې په چا خو یې څه حق نشته او یا د چا خو وربانديڅه حق نشته ... نو خیر دی او اوږده تقیریرونه به دلته بالکل نه کیږي ځکه پدې وخت کې د مړي دفن کول تر هر کار ضروري کار دی چې باید په تادي سره وکول شي پدې اړه زموږ فقهي کتابونه لیکي زه

يې مطلب تاسې ته نقل کوم : کله چې جنازه تياره شي بيا پدې وخت کې تقرير کول څرنګه چې د جنازې د وروسته والي سبب کيږي نو ټول علماء کرام يې مخالفت کوي ځکه چې هېڅ داسې فقيه نشته چې هغه د جنازې له تيارې نه وروسته د داسې څه منونکى وي چې کوم جنازه وروسته کوي بلکه ټول شريعت او علماء د مرګ نه واخله تر خښولو پورې په ټولو کارونو کې د بيړې کولو هدايت کوي .[1]

## د جنازې مونځ به څوک ورکوي؟

د حنفي مسلک له نظره که چېرته اسانه وي اول حق د سلطان دى چې د جنازې امامت او يا د هغه نائب ته په کار دي چې امامت وکوي د دوى د واک له امله دا يو قدر دى چې شريعت يې دوى ته ورکوي او دا د دوى حق دى او که په دوى کې څوک حاضر نه وو نو بيا د علاقې قاضي به امامت کوي ځکه له والي او د هغه له نائب نه وروسته په علاقه کې واکمني د ده وي او که دا کسان نه وو نو بيا د کلي امام حق لري ځکه دده په ژوند کې په ديني کارونو کې امامت همده کولو نو چې اوس دا کس وفات شوى هم دى نو جنازه به يې همدا وکوي او که امام نه وو او يا يې په جنازه کې شرکت نه وو کړى نو بيا يې چې په خپلوانو کې څوک ددې وړ وي چې د جنازې امامت وکولى شي نو هغه به وړاندې شي او امامت به وکوي ..

[1] رد المحتار ج٣ ص١٣٦

# د جنازې د مانځه طريقه

لکه مخکې چې تېر شول د جنازې په مانځه کې څلور تکبيرونه دي چې يو هم کم شي نو د جنازې مونځ نه کيږي کله چې د جنازې د مانځه وخت شي نو صفونه به برابر کړل شي او کوښښ به کيږي چې صفونه بايد طاق شي که ډېر کم خلق وي نو صرف په يوه صف کې د ودريږي که لږ زيات وي نو درى يا پنځه په همدې ترتيب د جنازې په صفونو کې به هم کوښښ کيږي چې سيده وي ، په مينځ کې يې خالي ځايونه موجود نه وي او ترڅو چې اول صف نه وي پوره کړل شوى بل صف به نه جوړيږي سعودي لوى عالم مرحوم شيخ ابن عثيمين فرمايل :
**الصفوف في صلاة الجنازة ينبغي فيها تسوية الصفوف كغيرها من الصلوات ، وأن يكمل الصف الأول فالأول ، وأن تُسدَّ الفرج بين الصفوف .**

ترجمه : د جنازې په مانځه کې صفونه په کار دي چې سيده وي لکه په فرضو مونځونو کې (په جمع کې) او دا چې اول صف بايد ډک کړي بيا ورپسې او په صفونو کې خالي ځايونه بايد ډک کړل شي .

خلق به نيت وکوي چې د زړه پوره توجه د جنازې مانځه ته برابره کړي نو کافي دي او که نشي کولى نو په خوله دې ورسره نيت ووايي که په عربي نيت کولى شي نو په لاندې ډول به نيت وکوي .

**نويت ان ادء اربع تكبيرات صلات الجنازة و الصلاة للرسول و الدعاء لهذ الميت** (د مونث لپاره **لهذه الميت**) **اقتديت بهذ الامام متوجهاً الى جهة الكعبة الشريفة .**

او که په عربي يې نشي کولى په خپله ژبه به نيت وکوي:

نیت مې کړی دی چې د جنازې مونځ د څلورو واړو تکبیرونو سره وکوم اقتداء کوم پدې حاضر امام پسې مخ مې د کعبې شریفې په لوري . او یا دېته ورته الفاظ چې څنګه ده ته اسان وي.

امام به الله اکبر ووایي ټول خلق به غوږونو ته لاسونه یوسي او الله اکبر به پټ ووایي بیا به لاسونه تر نو (نوم) لاندې کیږدي او وبه و ایي :

سُبحَانَکَ اللَّهُمَّ وَ بِحَمدِکَ وَ تَبَارَکَ اسمُکَ وَ تَعَالَى جَدُّکَ وَ جَلَّ ثَنَاءُکَ وَ لا اِلَه غَیرُک.

بیا به امام دوهم تکبیر ووایي او خلق به پټ ورسره الله اکبر ووایي لاس به پکې نه پورته کوي لاس پورته کول صرف په اول تکبیر کې وو بیا به درود شریف ووایي:

اللَّهُمَّ صَلِّ عَلَى مُحَمَّدٍ وَ عَلَى آلِ مُحَمَّدٍ کَمَا صَلَّیتَ و سلمت و رحمت و ترحمت عَلَى اِبرَاهِیمَ وَ عَلَى آلِ اِبرَاهِیمَ اِنَّکَ حَمِیدٌ مَجِیدٌ. اللَّهُمَّ بَارِک عَلَى مُحَمَّدٍ وَ عَلَى آلِ مُحَمَّدٍ کَمَا بَارَکتَ عَلَى اِبرَاهِیمَ وَ عَلَى آلِ اِبرَاهِیمَ اِنَّکَ حَمِیدٌ مَجِیدٌ.

بیا به امام دریم تکبیر ووایي خلق به پټ الله اکبر ورسره ووایي او لاسونه به په خپل ځای نیولي وساتي بیا که مړی بالغ وو نو لاندې دعا به ووایي :

للَّهُمَّ اغفِر لِحَیِّنَا وَ مَیِّتِنَا وَ شَاهِدِنَا وَ غَائِبِنَا وَ صَغِیرِنَا وَ کَبِیرِنَا وَ ذَکَرِنَا وَ اُنثَانا، اللَّهُمَّ مَن اَحیَیتَهُ مِنَّا فَاَحیِهِ عَلَى الاِسلاَمِ وَ مَن تَوَفَّیتَهُ مِنَّا فَتَوَفَّهُ عَلَى الاِیمَان.

او که نا بالغ هلک وو نو لاندې دعا به وایي :

اللَّهُمَّ اجعَلهُ لَنَا فَرَطاً وَ اجعَلهُ لَنَا اَجراً وَ ذُخرَاً وَ اجعَلهُ لَنَا شَافِعَاً وَ مُشَفِّعاً.

او که نا بالغه جینۍ وه نو لاندینۍ دعا به ووایي :

اللَّهُمَّ اجعَلهَا لَنَا فَرَطاً وَ اجعَلهَا لَنَا اَجراً وَ ذُخراً وَ اجعَلهَا لَنَا شَافِعَةً وَ مُشَفِّعَةً.

بیا به امام څلورم تکبیر ووایي پدې ځای کې هېڅ ډول دعا نشته صرف انتظار به وکوي چې امام سلام وګرځوي د څلورم تکبیر نه به وروسته امام اول ښي او بیا چپ طرف ته سلام وګرځوي او وبه وایي

السَّلامُ عَلَيْكُمْ وَ رَحْمَةَ الله

چې دواړو طرفونو ته امام سلام وګرځوي بیا به خلق هم ښي او چپ طرف ته سلام وګرځوي که چېرته امام سهو شي او پنځم تکبیر ووایي خلق به یې ورسره نه وایي بلکه خلق به صرف امام ته انتظار وکوي چې هغه سلام څه وخت ګرځوي.

# د جنازې د مانځه مسئلې

که امام سهو شو او د دريم تکبير نه يې وروسته سلام وګرځولو نو خلق به له ځان سره څلورم تکبير ووايي او بيا د سلام وګرځوي له امام سره به سلام نه ګرځوي.[1]

که څوک راغلل د هغه نه په جنازه کې لمړی تکبير تېر شو نو پاتې د جنازې مونځ به له امام سره وکوي چې کله امام سلام وګرځوي له ځان سره دې په پټه سره تېر شوی تکبير هم ووايي لکن که د سلام اړولو سره سم جنازه پورته شوه تر هغې دې وروسته بيا نه وايي .

او که څوک د جنازې مانځه ته پداسې حالت کې راغلل چې امام څلورم تکبير هم ويلی وو لکن سلام يې نه وو ګرځولی نو بيا د له امام سره په جنازه کې نه شريک کيږي .

که په يو ځای باندې متعددې جنازې جمع شوې وې نو د امام خوښه ده که په ټولو باندې په يو ځای مونځ کوي او که په هر يو باندې بېل بېل مونځ کوي او که متعد ډوله مړي وو نو د امام طرف ته به پداسې حال ترتيب کيږي لکه دوی چې ژوندي وو په امام پسې يې چې مونځ کولو په څه ډول يې په امام پسې صف جوړولو اول به د امام مخې ته نېږدې غوره نارينه سړی او بيا نور سړي بيا ماشومان بيا ښځې کېږدي.

که امام په يوه جنازه باندې مونځ شروع کړی وو بله راوړل شوه نو امام به خپل مونځ روان ساتي او په دوهمه باندې به يې له سر نه بيا وکوي.

[1] التتارخانية

که کوم مړی د مانځه نه بغیر دفن کړل شو نو تر دریو شپو پورې چې موقع برابره شوه نو په قبر یې دې مونځ وکوي او که تر دریو شپو تېر شو نو بیا یې د ورباندې نه کوي.

که د جنازې په مانځه کې امام سهو شي نو همداسې دې ورځخه تېر شي د جنازې په مانځه کې ځرنګه چې له اول نه سجده نشته نو د سهو په حالت کې هم د سهوې سجده وربانديې نشته .

## د جنازې د پورته کولو په وخت دعاء

په ځینې ځایونو کې رواج دی کله چې د جنازې د پورته کولو وخت شي یو کس را وړاندې شي دعاء شروع کړي ټول خلق خپل لاسونه پورته کړي او د هغه په دعاء پسې آمین وایي پدې وخت کې پدې ډول دعاء هم صرف رواج دی او دا هم څه شرعي عمل نه دی همدارنګه ځینې خلق دا دعاء د جنازې په وخت له مانځه وړاندې کوي د حنفي مذهب معتمد کتاب فتاوی عالمګیري پدې اړه لیکي :

**کره ان یقوم رجل بعد ما اجتمع القوم للصلوة و یدعوا للمیت و یرفع صوته .** [1]

ترجمه : دا مکروه دي چې یو کس پاڅیږي وروسته لدې چې خلق مانځه ته را ټول شي او مړي ته په جهر سره دعاء وکوي .

[1] فتاوی عالمګیریة کتاب الکراهیة

# له جنازې سره پټه خوله تلل

په ځینې ځایونو کې رواج وي کله چې خلق له جنازې سره ځي په زوره اواز سره کلمې وایې ، ځینې یې درود وایي او ځینې یې تکبیرونه وایي حال دا چې دا هیڅ شی هم شرعي حیثیت نلري او په احادیثو کې د هغه کس په اړه راغلي چې هغه جنازه وړي چې باید غلی او خاموش وي لکه حضرت ابو هریره چې فرمایي رسول الله فرمایل : **لا تتبع الجنازة بصوت ولا نار** . [1] (یعني د جنازې سره د اور او اواز نه وي) همدارنګه کله چې په جنازه پسې خلق روان وو یو کس په لوړ اواز سره وویل : د خپل ورور لپاره مو بښنه وغواړئ او دده لپاره استغفار وواياست حضرت عبد الله بن عمر چې واوریدل هغه وربانديې غصه شو او په غصه کې یې وویل : **لا غفر له بعد** ..

حضرت قیس بن عباد چې جلیل القدر تابعي دی او ډیر وخت یې د حضرت علي په ملګرتیا کې تېر کړی دی هغه فرمایي : **كانوا يستحبون خفض الصوت عند الجنائز، وعند الذكر، وعند القتال.**

ترجمه : صحابه وو به ښه ګڼلو د اواز ښکته والی د جنازې په وخت کې د ذکر په وخت کې او د جنګ په وخت کې .

همدارنګه حضرت امام نووي پدې اړه فرمایي :

**يستحب له أن يكون مشتغلاً بذكر الله تعالى، والفكر فيما يلقاه الميت، وما يكون مصيره، وحاصل ما كان فيه، وأن هذا آخر الدنيا ومصير أهلها، وليحذر كل الحذر من الحديث بما لا فائدة منه، فإن هذا وقت**

---

[1] ابو داود

**فكر وذكر، يقبح فيه الغفلة واللهو والاشتغال بالحديث الفارغ، فإن الكلام بما لا فائدة فيه منهي عنه في جميع الأحوال، فكيف في هذا الحال.**

ترجمه : هغه كس چې په جنازه پسې روان وي دده لپاره مستحبه ده چې د الله په ذكر باندې مصروف وي او د هغه څه په فكر كې وي چې دا مړى به ورسره مخامخ كيږي او د هغه څه په اړه فكر وكوي چې دا مړى به هغه ته ورځي او دا چې دى په څه حال كې دى او دا چې دا د دنيا آخري وخت دى او د دنيا ټول اهل همدې حالت ته ورتلونكي دي او په سختي سره دې پدې وخت كې د داسې كار نه ځان وساتي چې څه فايده پكې نه وي ، ځكه دا د ذكر او فكر وخت دى ، پدې وخت كې غفلت او بد كارونه بد ګڼل شوي دي او په بې ځايه خبرو كې مصروف كېدل بد ګڼل شوي دي ځكه پداسې شي كې خبرې كول چې فايده پكې نه وي په ټولو حالتونو كې منع شوي دي نو پدې حال كې به څنګه نه وي منع (چې د يو كس له دنيا نه هغه سفر دى چې كوم به پدې جنازه پسې د هر يو كس په قسمت كې وي خو د چا لږ مخكې او د چا لږ وروسته)

او شريعت موږ ته پدې وخت كې په چُپ والي او خاموش كېدلو باندې ځكه امر كوي ترڅو زموږ فكر په يو ځاى باندې را ټول شي او موږ ددې وخت پيدا كړو چې فكر وكوو او ځينې بزرګانو به پدې وخت كې ويل : په جنازه پسې روان خلق دې په دې كس نه ژاړي چې هغه مړشوى دى هغه چې هرڅنګه وو د خپلو عملونو نتيجې ته ورغلو كه ښه وي او كه بد اوس په ژړا هېڅ نه كيږي بلكه په جنازه پسې تلونكى هر كس بايد د خپل ځان په حال وژاړي چې سبا دده هم همدا حال دى بيا به دى څه كوي او دده به څه حال وي ..

کله چې پدې اړه له ابن تیمیة نه پوښتنه وشوه هغه وویل :

د جنازې په وخت کې اواز پورته کول مستحب نه دي نه په تلاوت سره نه په ذکر او نه په بل شي سره دا د څلورو واړو امامانو مذهب دی او همدا له سلف صالحینو له صحابه وو او تابعینو څخه نقل شوي دي او پدې کې ماته هېڅ ډول خلاف نه دی معلوم او پدې باندې ټولو اهل علم اتفاق کړی دی چې دا کارونه (د جنازې په وخت کې په ځینې ځایونو کې د تلاوت رواج دی او په ځینې ځایونو کې ورسره ذکر کیږي) په خیر القرون کې نه وو .[1]

## د جنازې په وخت کې له خندا نه ځان ساتل

هغه کس چې په جنازې پسې روان وي باید خفه وي او چې هرڅنګه یې په زړه غم نه وي باید بیا هم له خندا او عبث کارونو څخه ځان وساتي او باید فکر وکوي چې دا مرحوم اوس په څنګه حالت کې دی په نېږدې راتلونکې کې به دا حالت زما هم وي او که چېرته ددې تصور نشي کولی نو بیا د هغه کسانو تصور وکوي چې ددې مړي نه پاتې شوي دي هغه به ددې په مرګ څومره خفه وي ، چې لږ وروسته کور ته را ستانه شي څومره به ددې مرحوم ځای ورته خالي ښکاره کیږي او داسې نور ...

څکه خو کله چې حضرت عبدالله ابن مسعود یو کس ولیدو چې په جنازه پسې روان وو او خندل یې حضرت عبد الله بن مسعود ورته وویل : ته پدې وخت کې خاندې؟ و الله زه به نور لتا سره بالکل

[1] فتاوی اللجنة الدائمة

خبرې ونه کوم ... (ځکه په ده کې احساس نشته چې هغه لږ تر لږه دومره محسوس کړي چې دی اوس چېرته ځي او دی پدې وخت کې پدې لاره ولې او د څه لپاره روان دی) .

حضرت سفیان ثوري به چې کله د چا جنازې ته لاړو بیا به تر دریو ورځو پورې په خپل حال نه وو او بې سوره به وو .

پدې اړه علماء کرام فرمایي په سلفو (پخوانیو نېکانو) کې به چې مړی وشو کله به چې خلق په جنازه پسې روان وو نو چې له بهر نه به څوک څومره ورته متوجه شول د مصیبت خاوند (د مړي د کور خاوند) او نېږدې خپلوان یې پکې نه پېژندل ځکه په جنازه پسې روان کسان به ټول خفه وو ، ټولو به سرونه ښکته اچولي وو په فکرونو کې به ډوب وو ، د ټولو په مخونو باندې به غم ښکاره کېدو او په اوس وخت کې یوازې یو څو کسان چې هغوی د مړي نېږدې دوستان او یا خپلوان وي خفه ښکاره کیږي او د نورو په مخونو باندې هېڅ اثر نه وي وجه یې دا ده چې اوسني خلق یوازې د مړي په اړه فکر کوي چې هغه مړ شوی دی او د هغه په جدایي خو معلومه خبره ده چې خاص کسان متاثر او خفه وي او په عامو خلقو باندې دومره تاثیر نه کوي او پخوانیو خلقو به لږ د مړي په اړه فکر کولو او زیات به یې د ځان په اړه فکر کولو او دا به یې ویل چې یا الله سبا چې زما دا حال وي زه به څه کوم ؟ دا حال به په ما باندې څنګه راځي ...

# ښځې به په جنازه پسې نه راوزي

په ځينې ځايونو کې داسې وي چې کله جنازه له کوره ويستل کيږي ښځې په ژړا ژړا له جنازې سره راوزي او هلته اکثر د نامحرمو خلقو نظرونه هم پرې لګيږي دا هم ناروا دي لکه مخکې چې تېر شول د مسلمان حالت بايد داسې وي چې په غم او خوشحالي دواړو کې د الله له پاک دين څخه نه بې لارې کيږي او په دواړو حالتونو کې داسې کارونه او عملونه ورڅخه نه کيږي چې هغه د اسلام خلاف وي او مخکې موږ تېر کړل چې پداسې حالتونو کې د اسلام احکام نه خو پاتې کيږي او نه خو نسخ کيږي او نه پکې کمزوري راځي لکه په عادي حالاتو کې چې په ښځه باندې پرده کول فرض دي داسې د غم په حالتونو کې هم دي .

حضرت ام عطية الانصارية فرمايي : **نهينا أن نتبع الجنائز..** [1]

ترجمه : موږ (ښځې) لدې نه منع کړل شوي وو چې په جنازه پسې لاړې شو .

په بل حديث کې حضرت انس بن مالک فرمايي : **هَلَكَ رَجُلٌ مِنَ الأَنْصَارِ ، أَوِ امْرَأَةٌ ، قَالَ : قَدِمْنَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى الْجِنَازَةِ ، حَتَّى إِذَا كَانَ بَابُ الدَّارِ ، وَنَحْنُ مَعَهُ إِذَا هُوَ بِنِسْوَةٍ قُعُودٍ عَلَى بَابِ الدَّارِ ، فَقَالَ : " السَّلامِ عَلَيْكُنَّ " ، فَقُلْنَ : وَعَلَيْكُمُ السَّلامُ يَا رَسُولَ اللَّهِ ، قَالَ : فَقَالَ لَهُنَّ : " فَمَا يَحْسَبُكُنَّ هَا هُنَا ؟ " ، قَالَ : قُلْنَ : نَنْتَظِرُ هَذِهِ الْجِنَازَةَ ، قَالَ : " هَلْ تَحْمِلْنَهَا فِيمَنْ يَحْمِلُهَا ؟ " قُلْنَ : لا ، قَالَ : " هَلْ تُدَلِينَهَا فِيمَنْ يُدْلِيهَا فِي قَبْرِهَا ؟ "**

---

[1] سنن ابي داود

قُلْنَ : لا ، قَالَ : " فَهَلْ تَحْثِينَ عَلَيْهَا التُّرَابَ فِيمَنْ يَحْثِي عَلَيْهَا ؟ " قُلْنَ : لا ، قَالَ : " فَارْجِعْنَ مَأْزُورَاتٍ غَيْرَ مَأْجُورَاتٍ" . [1]

ترجمه : يو كس له انصارو څخه مړ وو او كه ښځه وه موږ له رسول الله ﷺ سره جنازې ته راغلو چې د كور دروازې ته را ورسېدو هلته څه ښځې په دروازه كې ناستې وې رسول الله ﷺ ورته وويل : السلام عليكن دوى ورته وويل : وعليكم السلام يا رسول الله رسول الله ﷺ ورته وويل : د څه لپاره دلته ناستې يئ دوى ورته وويل : موږ ددې جنازې انتظار ويستلو رسول الله ﷺ ورته وويل : تاسې دا جنازه وړئ؟ دوى ورته وويل : نـــــــــــه رسول الله ﷺ ورته وويل : دا تاسې په قبر كې ور ښكته كوئ؟ دوى ورته وويل : نـــــــــــــه رسول الله ﷺ ورته وويل : تاسې په ده باندې خاورې اړوئ؟ دوى ورته وويل : نــــــــــه بيا رسول الله ﷺ ورته وويل : ځئ تاسې لاړې شئ كورونو ته ستاسې لپاره (په جنازه پسې په راوتلو كې) اجر نشته .

[1] رواه الخطيب البغدادي

## مړی له یو ځای نه بل ځای ته وړل

کله چې یو مسلمان پداسې ځای کې وفات شي چې هلته د مسلمانانو مقبره وي او هلته داسې څوک پیدا کیږي چې دده تجهیز وکوي که په پیسو سره وي او که بغیر د پیسو نه وي او هلته دومره کسان مسلمانان پیدا کیږي چې په دې مرحوم باندې د جنازې مونځ وکوي نو بیا یې بل ځای ته د دفن لپاره نقل کول د حنفي مذهب له مخې مکروه دي پداسې حال کې چې د امام مالک د مذهب له مخې مکروه نه دي خو پدې شرط چې په وړلو کې یې د تغیر ، د بوی کولو او د مړي د بې عزتي خطرنه وي ، او د امام احمد ابن حنبل د مذهب له مخې هم ترڅو چې ضرورت نه وي نو مکروه دي او د امام شافعي د مذهب په یو قول کې ورته حرام او په بل کې ورته مکروه ویل شوي دي لکن حنفیان وایي چې دلته یې په سمه توګه تجهیز ، تکفین او تدفین کېدلی شي او دلته د مسلمانانو هدیره موجوده وي ځکه د مسلمان خښول د کفارو په هدیره کې ناروا دي نو بیا یې په لږ ساحه کې نقل کول روا دي او چې د یو میل او دوه میله څخه لرې وي نو بیا یې بل ځای ته نقل کول هېڅ ضرورت نه لري احناف فرمایي : **ولو نقل ميلا أو ميلين أو نحو ذلك فلا بأس به ، وفي هذا بيان أن النقل من بلد إلى بلد مكروه ، لأنه قدر المسافة التي لا يكره النقل فيها بميل أو ميلين ، وهذا لأنه اشتغال بما لا يفيد فالأرض كلها كفات للميت ، قال الله تعالى: أَلَمْ نَجْعَلِ الْأَرْضَ كِفَاتًا أَحْيَاءً وَأَمْوَاتًا [1] إلا أن الحي ينتقل من موضع إلى موضع لغرض له في ذلك ، وذلك لا يوجد في حق**

[1] المرسلات: 25 ـ 26

الميت ، ولو لم يكن في نقله إلا تأخير دفنه أياما كان كافيا في الكراهة .[1]

ترجمه : كه داسې يو ميل دوه ميله لرې بل ځاى ته نقل شي نو څه پروا نه لري نو ددې معنى داده چې له يو ښار نه بل ښار ته يا له يو ملک نه بل ملک ته نقل کول مکروه دي ځکه په پورتني عبارت کې نقل کول بلا کراهيت نه روا ګڼل شوي دي چې ساحه ميل او يا دوه ميله ورته تعين کړل شوېده ځکه تر ميل او دوه ميله نه لرې وړل پداسې څه شي باندې ځان مشغول کول دي چې څه فايده پکې نشته ځکه زمکه چې ټومره ده ټوله د مړي د ښخولو لپاره صحيح ده .

دومره خبره ده چې که څوک وغواړي نو د همدې مقصد لپاره ژوندى له يو ځاى نه بل ځاى ته نقل کولى شي (د مثال په ډول چې څوک په يو ملک کې په بيمار پوه شي چې دى نه جوړيږي نو بل ملک ته يې ددې لپاره نقل کړي چې هلته که وفات شي نو بيا به يې هماغلته ښخ کړو) او دا د مړي په حق کې مکروه دى او که پدې کې بل هيڅ مشکل رانشي نو دا مشکل خو شته چې دفن کول يې وروسته کيږي او د کراهيت لپاره همدومره بس ده .

او بل لوى دليل دادى چې اُحد مدينې منورې ته ډېر نېږدې دى خو چې د اُحد له غزا څخه وروسته ځينې خلقو غوښتل چې خپل شهيدان مدينې منورې ته نقل کړي رسول الله ددې نقل اجازه ورنه کړه او ويې ويل چې شهيدان بايد همدلته ښخ کړل شي او ځينې خلقو چې د رسول الله له امر نه وړاندې د نقل کولو کوښښ هم وکولو چې په اوښه به يې شهيد بار کړو مدينې منورې لور ته به يې کش کوله هغه به نه تله او چې کله به يې بېرته د

[1] شرح السير الكبيرللسرخسي

اُحد د میدان خواته پرېښوده نو پخپله به روانه وه ..

علماء کرام فرمايي له يو ځای نه بل ځای ته د مړي نقل کول چې هرڅومره اسان شي نو شپږ خبرې پکې راځي ..

١. په تابوت کې کېښودل .. امام نووي فرمايي په تابوت کې د مړي کېښودل نه دي روا مګر پداسې صورت کې چې خاوره نرمه وي قبر پکې نه جوړيږي او يا لنده وي او ترڅو چې دا ضرورت نه وي نو که د تابوت په اړه مړي وصيت هم کړی وي نه به عملي کيږي .

٢. اکثر په نقل کولو کې د انسان جسم بوی وکوي او دا دمړي سپکاوی دی .

٣. هغه کسان چې دا نقل کوي د هغوی لپاره دا هرڅه تکليف دی دومره لرې وړل ، په هر ځای کې پورته کول او ښکته کول ټول داسې تکليفونه دي چې ضرورت ورته نشته .

٤. هغه مصارف چې په حمل نقل باندې په لارو کيږي دا په اسراف کې راځي تردې خو دا ښه ده چې دا مال خيرات کړي او ثواب يې پدې مرحوم پسې وبښي .

٥. کوم ځای ته چې وروړل کيږي هلته اکثر خلق دوی ته انتظار کوي او هلته ورته هغوی تياری کوي چې هغوی ته د انتظار ورکولو هېڅ ضرورت نشته دا ټول بې ځايه تکليف دی .

٦. لکه د امام سرخسي په قول کې چې پورته تېر شول چې بل هېڅ هم نه وي له يو ځای څخه بل ځای ته په نقل کولو کې د تدفين (خښولو)

وروسته کول دي او رسول الله ﷺ يې په زړ خښولو باندې امر کړی دی او په يو حديث باندې د عمل پاتې کېدل لويه خبره ده بايد پاتې نشي نو ځکه له يو ځای نه بل ځای ته د خښولو لپاره د مړي نقل کول مکروه دي .

## جنازه په بيړه سره وړل

او کله چې د جنازې مونځ وشي او جنازه د قبر خوا ته روانه کړل شي پدې وخت کې که دا مړی نېک انسان وي نو هغه ته معلوميږي چې دی چېرته وړل کيږي نو خلقو ته چيغې وهي چې تيز تيز لاړ شئ ، زر زر مې ور وړئ او که چېرته الله مه کړه غير صالح انسان وي نو خلقو ته چيغې وهي ای خلقو ... په يو بل حديث کې راغلي چې چيغې وهي ای زما اهله ای زما اولاده ما چېرته وړئ او داسې چيغې وهي چې بغير د انسان څخه يې نور هر شی آوري او که انسان هغه چيغې واوري نو ځای په ځای به بې هوښه شي ... نو پدې ځای کې سنت دادي چې مړی په تيزۍ سره يوړل شي که نېک انسان وي چې زر هغه ځای ته ورسيږي چې کوم ځای ته دی ورتلل غواړي او که چېرته بد عمله انسان وي چې زر ترېنه د خلقو اوږې سپکې شي ... پدې اړه يو حديث دی حضرت ابو هريره ﷺ فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل : **أسرعوا بالجنازة فإن تك صالحة فخير تقدمونها إليه ، وإن تك سوى ذلك ، فشرّ تضعونه عن رقابكم .** [1]

ترجمه : کله چې تاسې جنازه وړئ نو په تيزي سره يې يوسئ که چېرته نېک انسان وي نو خير ته يې زر ور ورسوئ او که چېرته غير صالح وي نو خپلې اوږې ترېنه خلاصې کړي .

[1] **صحيح البخاري و مسلم**

حضرت عبد الله بن مسعود فرمايي : **سألنا نبيناً محمداً صلى الله عليه وسلم عن المشي في الجنازة . فقال : دون الخبب إن يكن خيراً تعجل إليه و إن يكن غير ذلك فبعداً لأهل النار .** [1]

ترجمه : موږ له رسول الله نه په جنازه كې د تللو په اړه پوښتنه وكوله (چې په څه ډول به ځو تيز او كه ورو؟) رسول الله راته وويل : پداسې ډول به ځئ چې له منډې نه لږ ورو وي (يعني منډې به نه وهئ او تيز به ځئ) ځكه كه په قبر كې ددې مړي لپاره خير وي نو غوره ده چې زر ور ورسول شي او كه هلته دده لپاره خير نه وي نو بيا دا كس له ځانه لرې كول زر په كار دي .

پدې ځای كې علماء كرام فرمايي چې تر ورو ورو تللو څخه تيز تلل غوره دي خو داسې تيز نه چې منډې وهل وي او داسې تيز تلل هم نه چې هغه كسان ورپسې نشي رسېدلی چې هغوی په جنازه پسې روان وي او هغوی كمزوري وي هغوی ته پسې رسېدل سخت وي او په تلو كې به د هغه كمزورو خلقو لحاظ هم ساتل كيږي چې په جنازه پسې روان وي .

[1] رواه ابو داود

## له دفن نه وروسته په کور کې دعاء

په ځینې ځایونو کې رواج دی کله چې مړی خښ کړل شي اکثر خلق د ډلې په شکل کې بېرته د مرحوم کور ته راځي او دلته ورته په کور کې کینې دعاء ورته کوي دا کار هم د سنتو خلاف دی او صرف رواج دی له شریعت سره یې څه ډول تړاو نشته زموږ فقهي کتابونه ددې دعاء په اړه فرمایي : **و یکره الاجتماع عند صاحب البیت و یکره له الجلوس في بیته حتی یاتي الیه من یعزي بل اذا فرغ و رجع الناس من الدفن فلیتفرقوا یشتغل الناس باموره‌م و صاحب البیت بامره .** [1]

ترجمه : او مکروه دي د کور له صاحب سره ټولېدل او مکروه دي ده ته په کور کې کیناستل ترڅو ده ته مېلمانه او داسې خلق راشي چې ده ته تعزیه کوي بلکه کله چې فارغ شو او خلق له دفن څخه را ستانه شول نو خلق د خپاره شي چې په خپلو کارونو آخته شي او د کور سړی هم په خپل کار آخته شي .

## التعزیة (غمرازي)

په اصل کې تعزیة د مرحوم کورنۍ ته تسلي ورکول دي او هغوی ته ور په زړه کول دي چې په دې هر غم باندې الله موږ ته اجر راکوي نو په کار ده چې موږ وربانديې صبر وکوو او مرحوم ته او د هغه نه پاتې خلقو ټولو ته د خیر دعاء کول دي .

## د تعزیې حکم

[1] رد المحتار

دا ډول تعزية سنت ده او چې څوک يې وکوي الله به ورته اجر ورکړي پدې اړه حضرت عمرو بن حزم فرمايي : رسول الله فرمايل : **مَا مِنْ مُؤْمِنٍ يُعَزِّي أَخَاهُ بِمُصِيبَةٍ إِلَّا كَسَاهُ اللهُ عز وجل مِنْ حُلَلِ الْكَرَامَةِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ .** [1]

ترجمه : کوم يو مؤمن چې خپل ورور (بل مؤمن) ته د هغه په مصيبت کې تعزيه وکوي الله به ورته د قيامت په ورځ د کرامت غاړکۍ په غاړه کې ور واچوي .

په بل حديث کې رسول الله فرمايي : **من عزى مصاباً فله مثل أجره.** [2]

ترجمه : چا چې يو غمجن ته تعزيه وکوله دده لپاره دومره اجر دی لکه هغه ته چې پدې غم کې څومره اجر ورکول کيږي .

## د تعزيې حکمت

تعزيه لکه اوس چې تېر شول يو سنت عمل دی لکه هر سنت چې د متعددو حکمتونو څخه ډک وي داسې تعزيه هم ده پدې کې هم ګڼ شمېر حکمتونه دي د مثال په توګه :

په تعزيه سره د غم ځپلي غم سپکيږي او پدې سره د هغه زړه ته تسلي رسيږي.

هغه ته په نېکو باندې د امر کولو ښه وخت دی چې انسان ورشي هغه ته نصيحت وکوي چې په خپل مصيبت باندې صبر وکوي ځکه که هغه فرياد وکوي هم هغه وفات شوی کس بېرته نه راګرځي خو ښه

---

[1] رواه ابن ماجة
[2] رواه الترمذي

خبره داده چې وربانديې صبر وکوي الله به اجر ورکړي .

پدې سره د غم ځپلې زړه خوشحاليږي او هغه ته احساس کيږي چې لما سره په غم کې شريک خلق شته .

په تعزيه کې مړي ته ښه خبره ده چې انسان هلته لاړ شي دعاء ورته وکوي چې الله وربانديې رحمت وکوي او ګناهونه ورته معاف کړي .

اکثر انسان چې تعزيې ته لاړ شي هلته د هغه د مرګ په اړه څه حقيقتونه واوري هغه څنګه وفات شو ... څنګه بيمار وو او داسې نور نو انسان ته عبرت حاصل شي او کوم انسان چې د مرګ په اړه ډيرې خبرې آوري الله هغه ته هدايت کوي لکه حضرت صفية فرمايي د انصارو يوه ښځه حضرت عائشې ته راغله د خپل سخت زړه نه يې ورته شکايت کاوه حضرت عائشې ورته علاج وښود چې مرګ ډير يادوه الله به ستا زړه نرم کړي .. يو څو ورځې چې تيرې شوې هغه ښځه بيا راغله حضرت عائشې ته يې د هغې د ښې مشورې شکريه ويله .

# تعزيه به چاته کيږي ؟

تعزيه به د مړي نه پاتې ټولو د کورنۍ غړو ته کيږي حتى چې هغه ماشومانو ته به هم کيږي چې په خبره پوهيږي او پدې پوهيږي چې دا زموږ د کور نه وفات شوی مرحوم دا زموږ د کورنۍ لپاره يوه ضائعه ده او همداسې په کور کې دده محرمې ښځې وې نو هغوی ته به هم تعزيه وکوي او که محرمې نه وې نو بيا د ښځو ته تعزيه نه کوي او که په کور کې داسې مشرې ښځې وې چې د هغوی سره په خبرو کولو کې د فتنې وېره نه وه نو هغوی ته د هم تعزيه وکوله شي پدې اړه زموږ علماء فرمايي : **ويستحب أن يعمم بالتعزية جميع أقارب الميت الكبار والصغار والرجال والنساء، إلا أن تكون امرأة شابة فلا يعزيها إلا محارمها .** [1]

ترجمه : مستحب ده چې تعزيه د مړي ټولو خپلوانو ته وکوله شي که واړه وي او که لوی وي که سړي او که ښځې وي مګر که ښځه ځوانه وه نو هغې ته د يوازې د هغې محارم تعزيه وکوي .

## د تعزيې وخت

تعزية تر دفن وروسته په کار وي ځکه هرڅوک چې غم ځپلې خاندان ته د تعزيې لپاره راځي دا يو راغلی مېلمه وي له ده سره کېناستل په کار وي او دی لکه مخکې چې تېر شول کورنۍ او د مړي نه شاته پاتې خلقو ته به په صبر او حوصله سره نصيحت کوي او مخکې لدې چې ميت دفن شي د هغه د تجهيز او تکفين او نور کارونه هم په سر پاتې وي او د کور خلق اکثر مصروف وي نو دده خدمت او له ده سره کېناستل نه کيږي نو ځکه بايد تر

---

[1] عالمګيري

دفن پورې صبر وکوي او د هغه نه وروسته به ورته راشي .

## د تعزیې موده

تعزیه به څه وخت کول کیږي؟

پدې اړه علماء کرام فرمايي : **قيل ثلاثة أيام بعد الدفن على التحديد، وتكره التعزية بعد ثلاثة أيام على ما ذهب إليه جمهور الفقهاء.** [1]

ترجمه : ویل کیږي چې د خښولو نه تر دریو ورځو پورې وروسته او د دریو ورځو نه وروسته بیا تعزیه کول مکروه دي لکه جمهور فقهاء کرام چې فرمايي ..

امام نووي فرمايي : **قال أصحابنا: وتكره التعزية بعد ثلاثة أيام، لأن التعزية لتسكين قلب المصاب، والغالب أنَّ سكون قلبه بعد الثلاثة، فلا يجدد له الحزن، هكذا قال الجماهير من أصحابنا.** [2]

ترجمه : زموږ علماء فرمايي ددریو ورځو نه وروسته تعزیة کول مکروه دي ځکه تعزیة ددې لپاره کیږي چې د غمجن زړه ته تسلي ورکړل شي (او دېته اکثر په اولو دریو ورځو کې ډېر ضرورت وي) او غالب داسې وي چې له دریو ورځو وروسته زړه خپله سکون وکوي نو په کار نه ده چې هغه ته بیا د هغه غم ور تازه کړل شي زموږ جمهور علماء همداسې فرمايي .

خو دا د هغه کسانو لپاره چې هغوی همدلته موجود وي نو هغوی به غم ځپلي خاندان ته پدې

[1] البناية في شرح الهداية للعيني
[2] الاذكار للنووي

دريو ورځو کې ورځي او هغه کس چې مسافر وي دلته موجود نه وي نو هغه چې هر وخت راشي کولی شي د دعاء او تعزيې لپاره هغه کور ته ورشي .

او د امام شافعي د مذهب ځينې علماء او ځه نور علماء بيا فرمايي چې انسان هر وخت دعاء ته ورتلی شي او په دريو ورځو کې يې تحديد او تعين نشته .

## د تعزيې ځای

تعزيه به په کوم ځای کې کيږي؟

لکه مخکې چې تېر شول چې تعزيه يو سنت عمل دی نو دا په هرځای کې کېدلی شي يو ځوک يو غم ځپلی په جومات کې ويني يا پسې کور ته ورشي او يا په بل کوم ځای کې پدې هر ځای کې سنت اداء کيږي حضرت امام شافعي فرمايي : **وَالتَّعْزِيَةُ مِنْ حِينِ مَوْتِ الْمَيِّتِ فِي الْمَنْزِلِ، وَالْمَسْجِدَ وَطَرِيقَ الْقُبُورِ، وَبَعْدَ الدَّفْنِ، وَمَتَى عَزَّى فَحَسَنٌ** .[1]

ترجمه : تعزيه د مړي د مرګ نه شروع کيږي په کور کې ، په جومات کې د قبرونو په لاره کې ، تر خښولو وروسته او هر وخت يې چې تعزيه وکوله نو غوره خبره ده (خو صرف دومره خبره ده لکه مخکې چې تېر شول چې تر دفن مخکې اکثر د کور خلق کېناستلو او د مېلمه استقبال ته وخت نه لري نو ښه ده چې له د فن وروسته وي او که داسې کورنی وي چې په هغې کې ډېر خلق وي ځينې يې په کارونو په تجهيز او تکفين آخته وي او ځينې نور يې ناست وي د مېلمنو استقبال کوي نو څه مشکل پکې نشته)

---

[1] کتاب الام

زمونږ په علاقو کې چې کله مرحوم خښ کړل شي له هغې نه وروسته تر دریو ورځو پورې د مرحوم د کورنۍ خلق ناست وي او خلق ورته دعاء ته راځي او دا هم ښه طریقه ده کله چې پدې اړه یا په کور کې د کېناستلو په اړه له مشهور عالم ابن باز نه پوښتنه وشوه هغه وفرمایل : **لا أعلم بأساً في حق من نزلت به مصيبة بموت قريبه، أو زوجته، ونحو ذلك أن يستقبل المعزين في بيته في الوقت المناسب لأن التعزية سنة، واستقباله المعزين مما يعينهم على أداء السنة، وإذا أكرمهم بالقهوة، أو الشاي، فكل ذلك حسن.**

ترجمه : ماته پکې څه پروا نه ده معلومه چې هغه خلق چې مصیبت وربانديې راغلی وي د خپل کوم نیږدې د مرګ له امله او یا د مېرمنې له امله او یا داسې نور چې تعزیه کونکي په خپل کور کې په یو خاص وخت کې استقبال کړي ځکه تعزیه سنت ده او د تعزیه کونکي استقبال کول له هغوی سره د یو سنت عمل په اداء کې مرسته کول دي او بیا چې د هغوی عزت په قهوه یا چای سره وکوي دا ټول ښه کارونه دي .

# په تعزیه کې به څه وایي ؟

ځینې علماء وایي د تعزیې په وخت کې څه خاص الفاظ نشته چې باید انسان یې ووایي خو صرف چې هلته ورشي هغه ته د تسلي خبرې وکوي او هغه ته د صبر او حوصلې نصیحت وکوي لکه امام شافعي چې فرمایي : **ليس في التعزية شيء مؤقت** .[1]

ترجمه : په تعزیه کې خاص معین شوي الفاظ نشته .

ابن قدامه فرمایي : **لا نعلم في التعزية شيئاً محدوداً** .[2]

ترجمه : موږ ته په تعزیه کې خاص څه شی نه دي معلوم .

شیخ البانی فرمایي : **ويعزيهم بما يظن أنه يسليهم، ويكف من حزنهم، ويحملهم على الرضا والصبر، مما يثبت عنه صلى الله عليه وسلم، إن كان يعلمه ويستحضره، وإلا فبما تيسر له من الكلام الحسن الذي يحقق الغرض ولا يخالف الشرع**...[3]

ترجمه : په داسې الفاظو به تعزیه ورکوي چې دده گمان وي چې پدې سره دده تسلي کیږي او دده غم ورسره سپکیږي او دا الفاظ ده ته صبر ورکوي او خوشحال کوي یې هغه ځینې الفاظ چې له رسول ﷲ نه را نقل شوي دي که ورته یاد وي نو ښه خبره ده او کنه نو بس ښې خبرې د ورته وکوي چې د شرع مخالفت پکې نه وي .

---

1 کتاب الام
2 المغني
3 احکام الجنائز

لکن بیا هم که څوک هغه الفاظ ووایي چې له احادیثو څخه اخیستل شوي وي نو غوره خبره ده لکه حضرت اسامة بن زید چې فرمایي : **أرسلت ابنة النبي صلى الله عليه وسلم أن ابناً لي قبض فأتنا، فأرسل يقرئ السلام ويقول: إن لله ما أخذ، وله ما أعطى، وكل شيء عنده بأجل مسمى، فلتصبر ولتحتسب.** [1]

ترجمه : د رسول الله لور رسول الله ته احوال را ولیږلو چې زموږ ماشوم وفات شوی دی ته راشه رسول الله ورته سلام ور ولیږلو او ورته یې وویل : هغه څه چې وایې اخیستل د الله دي او هغه چې وریې کړل هم د الله دي او هرشی د هغه سره په معلوم وخت سره دي ته صبر وکوه او د الله نه اجر وغواړه .

ددینه بغیر نور الفاظ هم را نقل شوي دي لکن دا غوره او ښه الفاظ دي ځکه چې رسول الله هم همدا الفاظ ویلي دي.

همدرانګه کله چې انسان هلته دعاء کوي نو چې څنګه یې خوښه وي هغسې دعاء د وکوي که د رسول الله دعاء کول غواړي نو رسول الله هم پداسې وخت کې یوه دعاء کړیده چې حضرت ام سلمة موږ ته را نقل کړیده هغه مبارکه فرمایي : کله چې رسول الله د ابي سلمة له وفات نه وروسته زموږ کور ته را غلو نو یې وفرمایل : **اللهم اغفر لأبي سلمة، وارفع درجته في المهديين، واخلفه في عقبه في الغابرين، واغفر لنا وله يا رب العالمين، وأفسح له في قبره، ونور له فيه .** [2]

---

[1] **متفق عليه**
[2] **رواه مسلم**

ترجمه : ای ﷲ ابي سلمة ته ښنه وکوه او د هغه درجه په هغه کسانو کې پورته کړه چې هدایت ورته شوی دی او په پاتې کسانو کې یې ته خلیفه شه او موږ ته او هغه ته ښنه وکوه ای رب العالمینه او د هغه قبر ورته فراخ کړه او ورته رڼا یې کړه .

## د کافر تعزیه

که چېرته په ګاونډ او پېژندګلو کې کافر کور وي او په هغه کور کې څوک مړه شي نو د هغوی هم تعزیه کول په کار دي او دا تعزیه کول یوه نیکي ده او زموږ شریعت موږ له کافر سره له نیکي کولو څخه نه منع کوي ﷲ فرمایي : **لا يَنْهَاكُمُ اللَّهُ عَنِ الَّذِينَ لَمْ يُقَاتِلُوكُمْ فِي الدِّينِ وَلَمْ يُخْرِجُوكُمْ مِنْ دِيَارِكُمْ أَنْ تَبَرُّوهُمْ وَتُقْسِطُوا إِلَيْهِمْ إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ الْمُقْسِطِينَ** .[1]

ترجمه : نه منع کوي تاسې (اي مؤمنانو) ﷲ له (دوستي د) هغو کسانو چې نه دی کړی جنګ له تاسو سره په (کار د) دین کې او نه ئې ایستلي تاسې له کورونو خپلو څخه (له دې نه ) چې نیکي کوئ تاسې له دوی سره او چې عدل او انصاف کوئ تاسې له هغوی سره بېشکه چې ﷲ خوښوي دوست لري انصاف عدل کوونکي .

اوس پوښتنه داده چې کله څوک کافر ته د کوم مړي تعزیه کوي هغه ته به څه وایي؟ نو فقها کرام فرمایي هغه ته د ووایي : **اخلف الله عليک** (ﷲ یې د عوض درکړي) ځینې علماء فرمایي چې کافر ته د په تعزیه کې ووایي : **لا يصيبك إلا خير** (ﷲ د تاته خیر در ورسوي) ځینې علماء کرام فرمایي چې مسلمان کله کافر ته تعزیه کوي نو داسې

[1] سورة الممتحنة آية ٨

الفاظ د ورته استعمال کړي چې په هغه کې مړي ته دعاء نه وي (که ددې کافر مړ شوی خپلوان کافر وو) ځکه کافر ته موږ شريعت له دعاء کولو نه منع کوي او داسې دعاء د هم نه ورته کوي چې په هغه کې ژوندي ته د قوت او برکت دعاء وي او که د هدايت دعاء ورته کوي نو غوره خبره ده ...

امام احمد او د شافعي مذهب ځينې علماء کرام فرمايي چې د کوم کافر د مسلمان کېدو اميد نه وي نو مسلمان ته ضرورت نشته چې د هغه د مړي تعزيه وکوي او د هغه سره ځان په غم کې شريک وګڼي ...

# مړي ته مرحوم ويل

کله په تعزيه کې او يا په بل ځای کې چې کله خلق مړی يادوي نو مرحوم لفظ ورسره استعمالوي چې معنی يې ده (هغه چې رحم وربانديې شوی دی) ددې لفظ استعمال څنګه دی؟

علماء پدې اړه فرمايي که څوک دا لفظ استعمالوي نو د هغه په زړه کې ورسره د دعاء مطلب وي يعني زموږ اميد دی چې الله به پده باندې رحم وکوي نو پدې اميد او دې تمه دا لفظ استعمالول څه ناروا والی نه لري .

او که چېرته د چا دا مطلب وي چې هغه ډېر ښه انسان وو الله په هغه باندې رحم کړی دی نو ددې لفظ داسې استعمال بيا بالکل نه دی روا ځکه دی له خپلو عملونو سره د الله حضورته ورغلی دی اوس د هغه خوښه که وربانديې رحم کوي او د هغه ګناهونه ورته بښي او که را نيسي يې لدې نه په دنيا کې څوک هم نه دي خبر ..

کله چې د سعودي لوی عالم ابن باز نه ددې لفظ په اړه پوښتنه وشوه هغه وفرمايل : په دنيا کې بغير د هغه کسانو نه چې په دنيا کې د هغوی په جنتي کېدلو باندې ښکاره دليل موجود وي لکه عشره مبشره او داسې نور څه کسان چې د هغوی جنتي کېدل ثابت دي او هغوی ته په دنيا کې ددې زيری ورکړل شوی دی چې دوی جنتيان دي او يا هغه کسان چې د هغوی په دوزخي کېدلو باندې دليدل موجود وي لکه ابي لهب ددېنه علاوه د بل هېچا په جنتي کېدلو او دوزخي کېدلو يقين نشته نو د مرحوم معنی که دا وي چې رحم وربانديې شوی دی نو استعمال يې بالکل صحيح نه دی د مثال په ډول چې څوک داسې وايي جناب عبد الله مرحوم نو ښه خبره داده چې داسې وايي عبد

ﷲ رحمه ﷲ .. او که د مرحوم مطلب هغه ته د رحمت لپاره دعاء کول وي نو بیا هېڅ اشکال پکې نشته .

## د مړي کورنۍ ته خوراک ورکول

څرنګه چې اسلام د امن ، صلح او د همدردي دین دی نو مسلمانانو ته امر کوي چې په کوم کور کې د چا په مرګ باندې غم واقع شي نو له هغوی سره د هر ډول همدردي وکوي او څرنګه چې هغوی په غم کې آخته وي نو شاوخوا خلق او ګاونډیان دي هغوی ته د ډوډۍ انتظام وکوي کله چې حضرت جعفر په شهادت رسېدلی وو رسول ﷲ وفرمایل : **اصْنَعُوا لآلِ جَعْفَرٍ طَعَامًا فَإِنَّهُ قَدْ أَتَاهُمْ أَمْرٌ شَغَلَهُمْ** . [1]

ترجمه : د جعفر آل ته خوراک برابر کړئ ځکه دوی ته داسې کار ور پېښ شوی دی چې هغوی یې د خوراک له تیارولو څخه مشغول کړي دي .

د پورتني حدیث نه وروسته صنعاني فرمایي : **فيه دليل على شرعية إيناس أهل الميت بصنع الطعام لهم لما هم فيه من الشغل بالموت** . [2]

ترجمه : پدې کې شرعي دلیل دی چې د مړي کور ته به د خوراک په تیارولو سره د هغوی سره همدردي کوي ځکه په مرګ سره هغوی لدې نه مشغول شوي دي چې پخپله د خوراک انتظام وکوي .

امام مناوي فرمایي : **فيندب لجيران الميت وأقاربه الأباعد صنع الطعام، ويحلفون عليهم في الأكل** . [3]

1 رواه الامام احمد والترمذي
2 سبل السلام
3 فیض القدیر

ترجمه : نو مستحب ده ګاونډيانو او لرې خپلوانو د مړي ته چې دوی ته خوراک تيار کړي او دوی ته تېنګ شي چې هغوی خوراک وکوي .

امام الباني فرمايي : **وإنما السنة أن يصنع أقرباء الميت وجيرانه لأهل الميت طعاماً يشبعهم .** [1]

ترجمه : او دا سنت ده چې د مړي خپلوان او همسايه ګان د مړي کورنۍ ته خوراک تيار کړي او هغوی ماړه کړي .

## د مړي له کور نه خوراک کول

زمونږ په خلقو کې چې رواج دی چې د مړي کور به خلقو ته خوراک ورکوي په ځينې ځايونو کې لوی مصارف کوي چې بدرګه ورته ويل کيږي دا بالکل په شريعت کې بنياد نه لري او د اسلام له ادبونو او د شريعت له هداياتو څخه لرې کار دی لکه په پورته ټکو کې تاسې ته ښکاره شول چې رسول الله امر کړی دې چې په کوم کور کې مړی شوی دی هغه کور ته به تاسې ددې امله خوراک وروړئ چې هغوی ديته نه دي خلاص چې ځان ته د خوراک انتظام وکوي او دا خو ډېره لرې خبره د ه چې خلق د هلته کيني او د هغه غم ځپلې کور نه د خوراک وکوي حضرت جرير فرمايي : **كنا نعد الاجتماع إلى أهل الميت وصنعة الطعام بعد دفنه من النياحة.** [2]

ترجمه : موږ به د مړي کور ته ور ټولېدل او له هغوی نه خوراک کول نياحة ګڼل (کوم چې په اسلام کې منع کړل شوی دی) يعنې دا کار به موږ حرام ګڼل او د حرام په نظر به مو ورته کتل او په احاديثو کې چې داسې الفاظ راشي نو معنی يې دا

[1] احكام الجنائز
[2] رواه الامام احمد

وي چې دا کار ناروا دی امام مبارکفوري فرمايي : **يكره اتخاذ الضيافة من أهل الميت لأنه شرع في السرور لا في الشرور وهي بدعة مستقبحة .** [1]

ترجمه : مکروه دی مېلمستيا خوړل د مړي له کور نه ځکه دا له کوم کور نه مېلمستيا خوړل په شريعت کې له هغه کور نه دي چې په هغه کې خوشحالي وي نه خفګان او دا بدعت دی چې بد ګڼل شوی دی .

لنډه دا چې د مړي له کور نه خوراک کول مکروه دي ددې لپاره څو وجې دي چې يو څو يې له پورته خبرو نه هم را ښکاره کيږي .

لمړی وجه :

رسول ﷲ امر کړی دی چې په کوم کور کې مړی شوی وي تاسې هغه ته خوراک برابر کړئ ځکه هغه د مرګ له وجې نه دېته نه دي خوشې چې هغوی تياری وکوي او خوراک تيار کړي نو ځکه تاسې ورته د خوراک انتظام وکوئ او پدې اړه حديثونه او د علماوو اقوال مخکې تېر شول .

دوهمه وجه :

په شريعت کې د دعوت او مېلمستيا پروګرام د خوشحالي په وخت کې وي په کوم کور کې چې خوشحالي وي واده پکې وي ماشوم پکې پيدا شوی وي نو هغه به مېلمستيا کوي او خپلوانو او راغليو مېلمنو ته به د خوراک تياری کوي او د غم په وخت کې د داسې خبرو وجود په شريعت کې نشته .

[1] **تحفة الاحوذي**

## دریمه وجه :

دا د جاهلیت د وخت رواج دی په هغه وخت کې به چې په کوم کور کې مړی وشو نو ټولو راغلیو ملېمنو ته خوراک ورکول د همدې کور کار وو او هغوی ددې ذمه وار وو چې ټولو خلقو ته خوراک ورکړي او اوس په ځینې خلقو کې همدا رواج پاتې دی او اسلام موږ ته په هروخت کې هدایت کوي چې په هېڅ شي کې به د جاهلت رسم او رواج نه خپلوو نه په جامه کې ، نه په خوراک کې ، نه په کومه خوشحالي او نه په کوم غم کې .

## څلورمه وجه :

کله چې انسان د خوشحالي کوم محفل جوړوي نو هغې ته له مخکې نه تیاری کوي او بیا خلق را غواړي او مرګ داسې شی دی چې هغه په یودم راځي او هغه هېڅ ته ددې صبر نه کوي چې انسان ورته ځان تیار کړي نو کېدای شي پدې کور باندې به دا مرګ پداسې حالت کې راغلی وي چې دوی به ورته په هېڅ ډول تیار نه وو نو په یو دم د دومره زیاتو خلقو لپاره تیاری کول دا اسان نه وي نو دا کېدای شي کله یو مسلمان ته د ډېر زیات تکلیف سبب شي نو ځکه اسلام کله هم نه خوښوي چې داسې تکلیف چا ته ورکړي .

## پنځمه وجه :

د مړي په پاتې خلقو کې کله وړوکی ماشوم وي چې د خپل پلار نه وروسته دا مال همده ته پاتې کیږي او ترڅو چې هغه بالغ شوی نه وي د هغه اجازه هم نه صحیح کیږي چې هغه چاته اجازه وکوي چې د هغه له مال نه د دومره لوی مصارف وکوي نو دا که د مړي د کور له مصارفو نه کیږي نو د هغه وړوکي معصوم ماشوم پکې حق وي او د

هغه حق خوراک هېچا ته هم نه دی روا او نه خو داسې اضطراري حالت دی چې انسان پکې حرام وخوري نو ځکه باید د مړي کور هېڅ ډول خوراک تیار نه کړي .

## شپږمه وجه :

اکثر دا دعوت چې کیږي غرض پکې د الله رضا نه بلکه یا خو خلقو ته د ځان ور ښکاره کولو او یا د خلقو په وړاندې د ځان کم نه راوستلو او یا د رواج متابعت وي چې دا نه د مړي په ښه کیږي او نه د ژوندیو بلکه دا د مال ضائع کول ګڼل کیږي که څوک خیرات کوي نو مړي ته د خیر خبره ده همدارنګه د ژوندیو هم پکې ثواب کیږي او د جنازې په ورځ دا خوراک چې کوم ته پښتانه بدرګه وایي صرف غرض یې د رواج متابعت ، له خلقو نه د ځان کم نه راوستل او ځان خلقو ته لوړ ښکاره کول وي چې شریعت پداسې ځای کې د یوې روپۍ لګولو ته هم اجازه نه ورکوي .

# ماخذ ونه

1. القرآن الكريم
2. البرهان في علوم القرآن
3. الإتقان في علوم القرآن
4. تفسير القرطبي
5. تفسير ابن كثير
6. تفسير الطبري
7. تفسير المنار
8. صحيح البخاري
9. صحيح مسلم
10. سنن الترمذي
11. سنن النسائي
12. سنن أبي داود
13. سنن ابن ماجه
14. سنن الدارمي
15. سنن الدارقطني
16. شرح النووي على مسلم
17. فتح الباري شرح صحيح البخاري
18. حاشية السندي على ابن ماجه
19. عون المعبود
20. تحفة الأحوذي
21. مرقاة المفاتيح شرح مشكاة المصابيح
22. السيرة النبوية (ابن هشام)
23. كتاب الشفا بتعريف حقوق المصطفى
24. زاد المعاد
25. البداية والنهاية
26. جامع العلوم والحكم
27. سير أعلام النبلاء
28. بداية المجتهد ونهاية المقتصد
29. بيان المختصر شرح مختصر ابن الحاجب
30. بدائع الصنائع في ترتيب الشرائع
31. تحفة المحتاج في شرح المنهاج
32. جمع الوسائل في شرح الشمائل
33. رد المحتار على الدر المختار
34. حلية الأولياء وطبقات الأصفياء
35. فتح القدير
36. البحر الرائق شرح كنز الدقائق

37. الأشباه والنظائر على مذاهب أبي حنيفة النعمان
38. القواعد النورانية الفقهية
39. أنوار البروق في أنواع الفروق
40. مدارج السالكين بين منازل إياك نعبد وإياك نستعين
41. الجواب الكافي لمن سأل عن الدواء الشافي
42. موعظة المؤمنين من إحياء علوم الدين
43. القاموس المحيط
44. لسان العرب
45. النهاية في غريب الحديث والأثر
46. مختار الصحاح
47. الحاوي للفتاوي

# د مؤلف چاپ شوي آثار

1. د حضرت محمد د نبوت معجزې
پښتو
2. ړنګه ځاله پښتو
3. آشیانه سوخته
فارسي
4. په اسلام کې د انسان حقوق
انګلیسي
5. دین یې دام دی ددنیا په لار کې اېښی
پښتو
6. فرار از کزار
فارسي
7. له کزاره تېښته
پښتو
8. زوړ دین نوی مسلمان
پښتو
9. ډم ډمکو جي او لیکوال
پښتو
10. ادیان پشت در
فارسي
11. له دروازې تر شا دینونه
پښتو
12. د انصاف او اعتدال لاره
پښتو
13. کفري الفاظ
پښتو
14. کل بچه
فارسي
15. معلومات عمومي فارسي
16. د حج لارښود پښتو
او انګلیسي
17. محمد رسول الله سیرت اخلاق او پېژندنه
پښتو

18. د اسلامي تاريخ له پانو څخه اول پښتو
19. د اسلامي تاريخ له پانو څخه دوهم پښتو
20. د اسلامي تاريخ له پانو څخه دريم پښتو
21. د اسلامي تاريخ له پانو څخه څلرم پښتو
22. د اسلامي تاريخ له پانو څخه پنځم پښتو
23. د اسلامي تاريخ له پانو څخه شپږم پښتو
24. د اسلامي تاريخ له پانو څخه اوم پښتو
25. د اسلامي تاريخ له پانو څخه آتم پښتو
26. د اسلامي تاريخ له پانو څخه نهم پښتو
27. د اسلامي تاريخ له پانو څخه لسم پښتو
28. د فقهي کتابونو له پانو څخه اول پښتو
29. د فقهي کتابونو له پانو څخه دوهم پښتو
30. د فقهي کتابونو له پانو څخه دريم پښتو
31. د فقهي کتابونو له پانو څخه څلورم پښتو
32. د فقهي کتابونو له پانو څخه پنځم پښتو
33. د علم حديث مطالعه پښتو او انګليسي
34. د فقهي کتابونو له پانو څخه شپږم پښتو
35. کلمه طيبة پښتو

36. الدعاء
پښتو
37. اللهم                                    عربي، پښتو،
انګلسي
38. المسجد
پښتو
39. قرآني معلومات لمړی برخه
پښتو
40. سلام                                    پښتو
41. د فقهي کتابونو له پانو څخه اومه برخه
پښتو
42. د وخت اهميت (لمړی برخه)
پښتو
43. د وخت اهميت (دوهمه برخه)
پښتو
44. د وخت اهميت (دريمه برخه)
پښتو
45. الحکمة ١                                    پښتو
46. الحکمة ٢                                    پښتو
47. الحکمة ٣                                    پښتو
48. الحکمة ٤                                    پښتو
49. حتمي سفر (مرګ)
پښتو
50. حتمي سفر (شهادت)
پښتو
51. حتمي سفرل (قتل)
پښتو
52. حتمي سفر (ځانکدن)
پښتو
53. حتمي سفر (کفن ، غسل ، جنازه)
ستاسې په لاس کې